# اقتصاد





لیکوال: پوهنیار سیف الدین سیحون

ژباړن : م.ا. یادگاري

# کتاب پیژندنه


د کتاب نوم : اقتصاد

لیکوال : پوهنیار سیف الدین سیحون

ژباړن : م.ا. یادګاري

خپرونکی : د اریک د ګرځنده کتابتونونو اداره

پرله پسې نومره : ۷۲

لومړی چاپ : ۱۳۸۰ هـ.ش کال، د خپرونکي له خوا، پېښور

چاپ شمېر : ۵۰۰ ټوکه

د مخونو شمېر : ۹۶

کچه : ۱۳,۵ × ۲۱ سانتي متره

د خپرونکي پته : دویم کور، رحمان بابا روډ،

پوسټ بکس: ۱۰۸۴، یونیورسټي ټاون - پېښور

ټیلفون: ۴۵۳۱۶-۴۴۳۹۲-۴۵۳۴۷

فکس: ۰۹۱-۸۴۰۴۷۱

الکترونیکي پوسټ: aric@brain.net.pk

کمپوز او طبع : احمد پرنټنګ پرېس، ټیلیفون ۲۱۵۵۴۰

د ویش او پلورنې ځای: د اکبر دفتر (د افغانانو له پاره د مرستو د انسجام اداره)

بسم الله الرحمن الرحيم

د اکبر د اطلاعاتي او نشراتي منابعو مرکز (اریک) له خلورو کالو راهیسې د افغانستان ولایتونو ته د گرځنده کتابتونونو پروگرام تر لاس لاندې نیولی دی. گرځنده کتابتونونه چې د فلزي صندوقونو په بڼه جوړ شوي دي، په یو خاص ځای کې ایښودل کیږي. د سیمې خلک ور څخه امانت کتابونه وړي، لولي یې او خپلو شاوخوا خلکو ته یې هم اوروي. کله چې په سیمه کې د کتابتون ټول کتابونه ولوستل شول، کتابتون بلې سیمې ته لیږدول کیږي او یا پرې یو شمیر نور نوي کتابونه ورزیات او هماغه ځای کې پاتې کیږي.

مونږ دا هڅه کړې ده چې د گرځنده کتابتونونو له پاره داسې کتابونه راټول کړو چې دلیکنې ژبه یې ساده او د خلکو د اړتیاوړ مطالب ولري، تر څو چې په ورځني ژوند کې له هغوی سره په دیني، ټولنیزو، اقتصادي، ښوونیزو، روزنیزو، روغتیایي، تاریخي، فني، مسلکي او... مسایلو کې مرسته وکړي.

موږ د گرځنده کتابتونو تر څنگ دا سروې هم ترسره کوو چې خلک څه ډول آثارو او موادو ته اړتیا لري او د کومو موضوعاتو او مطالبو د مطالعې هیله من دي. موږ لومړی هڅه کوو چې غوښتل شوي کتابونه له بیلا بیلو منابعو (کتاب پلورنځیو او خپرونیزو مرکزونو) څخه برابر او راونیسو. په نوموړو مراجعو کې د مطالبو او موادو د نشتوالي په صورت کې اریک هڅه کوي چې داړتیاوړ آثارو په تألیف، ترجمه او چاپ سره دغه تشه ډکه کړي.

د دغه موخې او هدف د تحقق او په عمل کې پلي کولو په منظور درې کاله

لومړی

دمخه د لوستونکو د علاقې وړ کتابونو د چاپ او خپراوي کار پیل شو او له هغه وخت راهیسې تر اوسه پورې د اریک ګرځنده کتابتونونو ادارې د محترمو همکارو مؤسسو په مرسته په دغه برخه کې پیاوړي ګامونه اخیستي او ګټور فعالیتونه یې ترسره کړي دي.

د ښه او سیستماتیک کار له پاره د اریک د ادارې استازیو او یوشمیر ژبړونکو او لیکوالو یو ګډهیأت وټاکل شو چې د مطلوبو کتابونو د پلان کولو، آماده کولو او چاپ کولو پړاوونه چې د تکړه او مسلکي لیکوالو له خوا تألیف کیږي، په ګډه پر مخ بوځي.

دغه هیأت د افغانانو د صمیمي همکارې میرمن نانسي هیـــچ دوپري، سید محی الدین هاشمي، خواجه غلام جیلاني شبل، محمد شکیب افضلي او محمد رفیع څخه تشکیل شوی دی.

مونږ له خپلو ټولو درنولو ستونکو څخه چې د هیواد په بیلا بیلو ښارونو او کلیوالو سیمو کې زمونږ له کتابتونونو څخه ګټه اخلي، هیله لرو چې خپلې اړتیاوې، غوښتنې او پوښتنې راولیږي او د هیواد له لیکوالو او پوهانو څخه غواړو چې چه له مونږ سره په دې لاره کې مرستندوی شي، چې وکړای شو خپلو خلکو ته لا ښه او ګټور کتابونه وړاندې کړو.

په درنښت

د اریک د ګرځنده کتابتونونو اداره

# فهرست

عنوان ———————— مخ

عنوان ——————————— مخ

# سریزه

د اقتصاد پوهه چې د بشري ټولنې د متغیرو او بدلیدونکو شرایطو زیږنده ده، د انسان په ژوندانه کې ډیر اهمیت مونډلی او د انسان د ژوندانه په ډیرو ساحو کې یې ډیر تاثیرات پرځای پریښي دي. د اقتصاد علم لکه د عصري پوهنې نورې برخې د لویو بدلونونو په بهیر کې واقع شوی او د هغه مسایل مختلف بعدونه احتوا کوي.

په اوسنیو شرایطو کې د اقتصاد علم څخه د اقتصادي او اجتماعي سیاستونو د تنظیم له پاره استفاده کیږي او د غه اصل د ټولنې د ودې او انکشاف سره په تدریج پراخوالی مومي. هیوادونه او مختلفې مؤسسې له دې علم څخه د تولیدي او توزیع په چارو کې او همدا رنګه د داخلي او خارجي سوداګرۍ او مبادلې، د قیمتونو کنترول، د اقتصادي نوسانونو، د مالي او پولي مسئلو په تنظیمولو او منسجم کولو کې، د اقتصادي او اجتماعي ودې او انکشاف پلانونو په طرح کولو کې، او د هیوادونو د رشد او ودې په برخه کې په هر اړخیزه توګه کار اخلي، او د اقتصادي ودې او پراختیا له پاره له دې علم څخه په منطقي او معقوله توګه ګټه اخیستل په یوه دوامداره او کلي قاعده تبدیله شویده.

«د اقتصاد علم، لکه د نورو اجتماعي علومو په څیر ځانګړي او مشخص مفاهیم اصطلاحات او مضامین لري، چې هر سړی خپل د رابطې د نوعې سره سم، چې د ټولنې سره یې لري، د دې مفاهیمو، اصطلاحاتو، حدودو سره پیژند ګلوي پیدا کوي، او د اقتصاد متقابله رابطه د نورو اجتماعي علومو او د اجتماعي او اخلاقي محیط د ضوابطو ارزښتونه په درسته توګه درک او اجراء کوي.»

د اقتصاد علم زده کړه ژورې او دوامدارو مطالعې غوښتونکې ده او په عصري علومو کې یو پیچلې ساحه تشکیلوي، او د هغه اسسات هم پراخه او دوامداره مطالعې ته اړتیا لري. هغه شی چې په دې رساله کې مطالعه او څیړل

کیږي، د دې علم یوه اندازه عمومي او کلي مفاهیم دي، چې د اقتصادي او اجتماعي مسئلو په هکله چې په ورځني ژوندانه کې سړی ورسره هرو مرو مخامخ کیږي، انسان ته مفکورې او پوهنه وربښي. د همدغې اړتیا پرېنسټ دوخت د کموالي سره سم، هغه شیان چې د لیکوال له نظره با اهمیته ګڼل کیږي، په دی رساله کې انعکاس موندلی، او د پیچلی او تخصصي مفاهیمو، د ریاضي فورمولونو له استعمال او استفادی څخه ډډه شوې ده.

دغه رساله په شپږو څپرکو (فصلونو) کې لیکل شوې ده، په لومړی فصل کښې د اقتصاد د علم مفهوم او ماهیت او ځینې مقدماتي مسئلې او د ښې پېژندنې و آشنائي له پاره د دې عرصې سره بررسي شویده، په دوهم فصل کې هغه اقتصادي مفاهیم او اصطلاحات چې په اقتصاد کې ډیر معمول او متداول دي مطرح شوي او د دغې اصطلاحاتو د ضرورتونو په اساس قدامتونه هم په پام کې نیول شوي دي.

په دریم فصل کې اقتصادي نظرئې له تاریخي نظره څېړل شوي او نظریات او عمده اقتصادي مکتبونه لنډ تحلیل شویدي، په څلورم فصل کې اقتصادي سیستمونه او اقتصادي سیاستونه چې د هغې څخه یې نشأت کړی بررسي شوي دي، په پنځم فصل کښې سوداګري او د مالونو تبادله مطالعه او ارزیابي شویده، او په شپږم فصل کې د پیسو (پول) اقتصاد، بانکداري، مالیه او بودجه په نننې او معاصر اقتصاد کې په لنډه توګه تر مطالعې لاندې نیول شوې دي.

څېړنه د علمی او اکاډمیکو معیارونو په بنسټ ترسره شوې، او د معتبرو او با ارزښتو کتابونو او رسالو څخه په دې هکله استفاده شوې، د مأخذونه لست د دی کتاب په پای کې را اخیستل شوی.

په درناوی

پوهنیار سیف الدین سیحون د کابل

پوهنتون د اقتصاد پوهنځي استاد

لومړی څپرکی :

# د اقتصاد د علم مفهوم او ماهیت

## د اقتصاد د علم د زده کړې اړتیا او اهمیت:

د نن ورځې انسان د هر وخت څخه زیات خپل د چاپیریال او مسلط اقتصادي او اجتماعي سیستم تابع او ورپورې تړلی دی. ملي نظام جهاني شرایطو ته تابع دی، د نني عصر دولتونه سره تړلي دي، چې اقتصادي ضرورتونو اتحاد او وابسته ګیو ته چټکتیا او شدت وربښلی دی.

په مجموع کې د انسان فعالیتونه، او د هغوی کار او هلې ځلې په اقتصادي ډګر کې د هغه په ژوند کې د بدلونونو باعث ګرزېدلي دي. انساني ټولنه د مختلفو او مغلقو ضرورتونو په اساس، لکه پوښاک، مسکن، روغتیا، تفریح، کسب او کار، اجتماعي تأمینات او مزد او معاش، قیمتونه، پانګه اچونه، پروژه سازي، بیمه او داسې نورو اقتصادي مسئلو پورې تړل کیږي، نو ځکه «د اقتصاد د علم اساسي وظیفه د انسان نجات د هغه د ضرورتونو د فشار څخه دی».

اقتصادي مسایل ډیر او مختلف دي، او د هغو زده کړه انسان ته دا امکان وربښي چې په لاندې مواردو کې روښانه نظر لاس ته راوړي:

۱- د کار او کارګرۍ مسایل، د کار د مزد او اجورې مطالعه او د هغه تفاوت په نړیواله سطحه، د خرید د قدرت سره جوخت، چې په مختلفو هیوادو کې موجوده ده.

۲- د قیمتونو د لوړوالي په هکله د هیوادو او په مجموع کې په نړیواله سطحه پوهه لرل.

۳- د هيوادونو د توليداتو څېړنه او مطالعه او د مختلفو هيوادو د عوايدو مقايسه په نړيوال ډگر کې.

٤- د اسعارو د نرخ د تغيراتو او تحولاتو څېړنه او مطالعه په ملي او نړيواله سطحه.

٥- د عوايدو د ويش په هکله څېړنه او بررسي د اشخاصو او افردو په منځ کې او د مولدو پس اندازونو تشکيل، د پانگې آچونی (سرمايه گذاری) له پاره.

٦- د وروستوالي د علتونو او د اقتصادي پرمختگ پلانگذاري، د اقتصادي او اجتماعي وروستوالی د منځه وړولو په هکله پوهه.

۷- د دولت په واسطه د مالیې راټولولو په هکله معلومات او همدارنگه د مالي، پولي او اداري سيستمونو دقيق تنظيم، او همدغسې د محاسبوي او محافظوي سياستونو د محلي صنايعو په هکله د بهرنيو رقيبانو په مقابل کې تنظيمول. ددې پوهې د پراختيا او ودی په صورت کې دا ايجابوي چې د ټولنې او افرادو او اشخاصو آگاهي په منظور له دی اقداماتو څخه او همدارنگه سبيسدی او مشارکت رشد او اقتصادي انکشاف له پاره لږ تر لږه ددغه معلوماتو څخه برخمن وی، ترڅو د اقتصادي او اجتماعي تحولاتو په لاره کې د معاصر تمدن همگام او د اقتصادي پرمختگ په لوري حرکت وکړای شي.

د اقتصاد علم او پوهه له بیلابیلو څانگو څخه تشکيله شوې ده، چې له هرې برخې سره د آشنائي، په لړ کې زده کوونکی د مختلفو دقيقو او پيچلو مسئلو سره مخامخ کيږي، چې منطقي تفکر او علمي پوهې ته اړتيا لري.

## د اقتصاد علم موضوع:

اقتصاد هغه علم دی چې د هغه په چوکاټ کې، اقتصادي فعاليتونه، د مسئلو علت او معلول او د اقتصادي پديدو مشخصات، لکه د توليد منابع او عواملو (ځمکه، کار او سرمايه) او همدارنگه (د کار وسايل، د کارنيرو، د کار

مواد او اداره) ترکیب او د هغه قیمت گذاري او د عوایدو ویش او د هغوی تغیرات او تحولات، پیسې (پول) او کریدت او د مالونو راکړه او ورکړه (تبادله) په ملي او بین المللی ساحه کې ارزیابي کیږي.

په نننی او معاصر اقتصاد کښې، اقتصادي تعادل او عدم تعادل حالت، او اقتصادي منظم او دقیق روشونه او لارې تاکل د پلانگذارۍ له لارې هم تربحث او مطالعې لاندې نیول کیږي.

د مالي او پولي سیاستونو اغیز هم د عادي او ورځنیو اقتصادي فعالیتونو په چوکاټ او محدوده کې ډیر اهمیت لري، او سیاستونه د اقتصاد په عمومي او مشخص حالت باندې ځانگړې اغیزې لري، چې د غه موضوع باید د اقتصادي نظریاتو او سیاستونو په برخه کې په ژوره توگه په پام کې ونیول شي.

اقتصاد دوه جنبې لري: لومړی محض اقتصاد او دوهم عملي اقتصاد.

محض اقتصاد د انساني او پولي څخه بیله او مستقله پدیده ده، او هغه د طبیعي او مستقلو قوانینو له کشف او پلټنې څخه عبارت دي، چې د هغه په نسبت د محصولاتو تولید، د پانگې (سرمایې) تشکل او د ټولنې شتمني او ثروت تقسیم او ویش صورت مومي.

عملي اقتصاد د هغه قاعدې له پلټنې څخه عبارت دي، چې ښه او بهتره شکل د سازماندهي د محض اقتصاد د قوانینو څخه په استفادې سره د ډیرې گټې او شتمنۍ (ثروت) دلاس ته راوړلو په منظور تأمینیږي. په دې معنی محض اقتصاد هم هغه د اقتصاد د علم عملي اصول دی. او له نننی عملي اقتصاد څخه منظور اقتصادي او ټولنیز (اجتماعي) سیاستونه دی.

## د اقتصاد علم پیژندنه:

د اقتصاد د علم د منځ ته راتلو څخه تر اوسه پورې له مختلفو دیدگاهو څخه ډیر تعریفونه طرح او وضع شوي دي.

د ارسطو له نظره اقتصاد: « د منزل تدبیر او د کور مدیریت دي »، ځکه چې په هغه وخت کې « کورنۍ » د اقتصاد واحد استازی یا نماینده ګڼل کېده.

آدم سمیت A. Smith اقتصاد « د شتمنۍ علم » ګاڼه، دوید ریکاردو D. Ricardo د اقتصاد اساسي هدف او بررسي « د ثروت تقسیم او توزیع » ګڼل؛ جان استوارت میل J. S. Mill د اقتصاد علم « د ثرورت ماهیت بررسي کول د تولید او توزیع د قوانینو له لارې » ګاڼه، الفرا مارشال (د رفاه مسلک) په اقتصاد کې مطرح کاوه، هغه د اقتصاد غایه او هدف د انسان سوکالي اورفاه او شتمني (ثروت) یې د دې هدف ته د رسیدو په خاطر یوه وسیله ګڼله. او آرتورپیګو A. Pigou اقتصاد د پېسې (پول) د پیدا ښت د څرنګوالي او د هغه تاثیر د اقتصادي فعالیتونو په رابطه مطالعه کوي، او ځینې نور د اقتصاد علم په بازار کې د قیمتونو ټاکل او مطالعه او د کالیو تبادله تعریف کوي او ځینې نور، اقتصاد د کمیابو تولیدي منابعو د اختصاصي علم په توګه تعریفوي، او ځینې بیا هم د اقتصاد علم د عقلاني تصامیمو د اتخاذ له پاره (څه په لېږوالي د شرایطو او څه په ډېروالی د شرایطو) یو منطق بولي. یعنې اقتصادي منطق په واقعیت کښې د لږ یا کمیاب عوامل د تولید ترکیب او تخصیص څرنګوالی د اقتصادي کارونو د ایجادولو په منظور او د خلکو د زیاتره رضایت په خاطر په اقتصادي تولنه کې وي.

په پورتنیو تعریفونو کې د اقتصاد د علم په باره کې یو تعداد مهمې جنبې موجودې دي، او هر یوه یې د خپل طرز تلقي او دیدګاهو څخه یوه جنبه مطرح کړېده.

ډیر دقیق تعریف د اقتصاد علم څخه پل سمویلسن Paul Samuelsan امریکائی معاصر اقتصاد پوه وړاندې کړی دی، هغه په دې عقیده دی چې: « د اقتصاد علم د هغو روشونو له بررسۍ څخه عبارت دی چې انسان د پیسو په واسطه یا بیله هغې څخه د کمیابو منابعو د تخصیص له پاره، د کالیو او خدمتونو د تولید

او سرته رسولو په منظور دوخت او زمان په اوږدو کې او همدارنګه د هغه د تقسیم او توزیع دا شخاصو او ګروپونو په منځ په تړلنه کې، د مصرف په منظور په اوسني او آینده وخت کې انتخابوي».

## له نورو علومو سره د اقتصاد د علم اړیکې:

د اقتصاد علم د نورو اجتماعي (ټولنیزو) علومو په څیر له بیلا بیلو علومو سره مختلفې اړیکې او پولې لري، چې په لاندې ډول د هغه رابطه او اړیکې د نورو علومو سره په لنډه توګه ترڅیړنې او بررسۍ لاندې نیسو:

## اقتصاد او فلسفه:

فلسفه په بشپړه توګه عبارت له هغه تحقیق څخه دی چې د خلقت او هستۍ نظام د اسرارو د علتونو په باب صورت نیسي. د همدې فلسفي نظریاتو او دلایلو پر بنسټ دی چې اقتصاد خپل اساس او مبداء د هغه پواسطه بیانوي. زیاترو اقتصادي مکتبونو د فلسفي نظریو په اساس بنا موندلې او ددې اقتصادي مکتبونو هدف او مرام د فلسفې له تګ لارې څخه په استفادې سره، خپل اقتصادي نظریات توجیه او عملي کوي.

## اقتصاد او تاریخ:

تاریخ تیرې شوې واقعې د زمان او مکان له نظره انعکاسوي او د تاریخ د علم په استفادې سره دانسان ژوندانه د تحول په باره کې او د انساني ټولنې د تیرشوي او اوسني ژوند په باره کې نظر ځرګندوي. د اقتصادي علومو بنسټ د اقتصادي او اجتماعي تاریخ په بنسټ او اساس اینبودل شوی دی.

له تیرو اقتصادي تجربو څخه کولای شو د هغه منفي او مثبتې نقطې په پام کې وینسو، او تجربه شوې معقوله لاره په عمل کې انتخاب او پلې کړو.

## اقتصاد او جغرافیا:

انسان د خپل ژوند د ادامې له پاره، له طبیعي امکاناتو څخه د ښې او معقولې استفادې په خاطر او د خپلو اړتیاوو د لیرې کولو په خاطر، او د تولید د

سطحې د لوړوالو په منظور د کمي او کیفي له نظره، د خپل چاپیریال او طبیعي ماحول پیژندنې ته اړتیا لري. د مثال په توګه د کرنیزو محصولاتو د زیاتوالي په خاطر په یوه سیمه کې لازمه ده، چې د هغې سیمې د خاورې د نوعیت او څرنګوالي، د باران د اورښت، د ځمکې لاندې اوبه، اقلیمي شرایطو، حرارت او رطوبت او داسې نورو موضوعاتو په باره کې مطالعې ترسره شي. د جغرافیې علوم د غه ټول معلومات انسان ته وړاندې کوي، د جغرافیې د علم په مرسته، موږ کولای شو چې طبیعي عوامل او اقلیمي اغیزې د انسان د فعالیت سره سم د تولیدیو ډیر عمده عامل وګڼو.

## اقتصاد او سیاست:

د ټولنیزو (اجتماعي) علومو په منځ کې سیاست له هرڅه څخه زیات اقتصادي علم ته نږدې او ورسره تړلی دی. اصولاً د سیاست د علم مفهوم او هدف د هیواد او ټولنې اداره ده.

د یو هیواد او ټولنې ټوله اداره د هغې ټولنې اقتصادي نظام پورې تړلې ده. که سیاست د اداري هنر او د قدرت د مطالعې علم په یوه ټولنه کې دی، نو د نظامونو اقتصادي سیاستونه، پلانونه، بودجه او د دولت اقتصادي او اجتماعي پروګرامونه هم د یوسیاسي نظام د پایو د ټینګښت او د هغه د قدرت د مشروعیت له پاره ډیره اغیزه لري. اقتصاد په ډیرو مواردو او حالاتو کې په هیواد کې د سیاسي او اجتماعي بدلونونو او تغیراتو له مهمو عواملو څخه ګڼل کیږي.

په اوسنیو شرایطو کې چې ژوند او د هغه اړتیاوې ډیرې زیاتې او پیچلې دي او د هغه لمن د ورځې په تیریدو سره پراختیا مومي، نو په دې توګه د اقتصاد رول او نقش په سیاسي ډګر کې هم ورځ په ورځ زیاتیږي. په ډیرو هیوادونو کښې خلک عموماً د دولتونو اقتصادي سیاست ته ډیره پاملرنه کوي او د هغه له رویه د حاکمې دستګاه کره او وړه د هغه د اقتصادي سیاست له مخې ارزیابي کوي.

په اوسنیو شرایطو کښې د اقتصادي قوانینو او رابطو پیژندنه او پوهه د هیوادو د سیاسي اداري د مسئلو لومړنی او اساسی جزء گرځیدلی دی.

## اقتصاد او ټولنپوهنه (جامعه شناسي):

ټولنپوهنه (جامعه شناسي) د ټولنې د جوړښت، د ټولنې او اشخاصو د تگ یا په اصطلاح د هغوی د رفتار او کردار د یو اوبل په مقابل کې او د هغه عنعناتو، ادابو او د هغه له انگیزو څخه بحث کوي.

د ټولنپوهنې د نظریاتو ځیېړل او نتیجه گیري یو مهم علمي مېتود اقتصاد پوهانو ته وړاندې کوي، او له اقتصاد پوهانو سره د اقتصادي قوانینو په تنظیمولو او اجرا کولو کې مرسته کوي. اقتصادي فعالیتونه او اجرا ءت په ټولنه کې ځینې عکس العملونه راولاړوي، نو ځکه اقتصاد پوهان باید د موضوع د اجتماعي او ټولنپوهنې له نتیجې څخه بشپړه پوهه ولري، د مثال په توگه د کلیو او باندېو ډیر خلک نوي کورونه د عصري وسایلو سره نه منې، او اکثراً عنعنوي او پخوانی کورونو ته ترجیح ورکوي. نو ځکه ویلای شو د اقتصاد علم د ټولنپوهنې او روانشاسی په مرسته باید ددې مخالفتونو علت وڅیړي او معلوم یې کړي، او د سمې او عملي لارې څخه په استفاده خلکو ته قناعت ورکړي. همدارنگه د ټولنپوهنې (جامعه شناسي) په مرسته، د اقتصاد علم کولای شي دا معلومه کړي، چې ولې او په څه علت ځینې اقتصادي پلانونه په ځینو ټولنو کې په بریالیتوب سره تطبیقیږي او په ځینو نورو ټولنو کښې نامطلوبه اثرونه او نتیجې منځ ته راوړي.

## د اقتصاد او حقوق علم:

د حقوق علم د هغو قواعد او اصولو څخه عبارت دی چې د اشخاصو او افردو پر رابطې د یو بل سره د ټولنې او دولت په مقابل کې حاکم وي.

د اخلاقي قوانینو پر خلاف چې خاص اجرائیوي ضمانت پکې شامل نه دی، حقوقي قوانین د اجرائي ضمانت لرونکي دي، او خلک د هغه په تطبیق او یا د هغه

څخه په خود داری مکلف دي. د اقتصادي او حقوقي علومو رابطه له دې نظره د اهمیت وړده، چې دوی دواړه د ټولنې او اشخاصو (افرادو) اړیکی او رابطې بررسي او تنظیموي، مګر هر یو د دې اړیکې او رابطې د خاصو دیدګاهو څخه څیړي، مثلاً د صنایع په برخه کې د اقتصاد علم دغه موضوع د کارګرانو څخه مناسبه استفاده د تولید په برخه، د معاشونو او قیمتونو موضوع، د صنعتي شیانو او تولیداتو د عرضې او تقاضا مسئله او داسې نور تر بحث لاندې نیسي، په داسې حال کښې چې د حقوقو علم د کارګر او کار فرما په منځ اړیکې د قانون له نظره، فردي او د ډله ایز قرار دادونه، د کارګر او کار فرما د اختلافونو په هکله مقررات، بیمه او داسې نور تر مطالعې او څیړنې لاندې نیسي.

## اقتصاد او دیني علوم:

اقتصاد د دیني علومو سره نږدې اړیکي لري، او د اسلامي فقهي او د اسلام د مقدس دین ارشاداتو او نورو ادیانو زیاتره برخه اقتصادي مسایل تشکیلوي. د دې حکمونو زیاته برخه د ټولنې اقتصادي او معیشتي روابطو په تنظیم پورې اړه لري.

## د اقتصاد رابطه له روانشناسی، بشر پیژندنې او نژاد پیژندنې سره:

برسیره پر هغو علومو چې ورته اشاره وشوه، د اقتصاد علم له نورو ټولنیزو علومو، لکه: رواشناسی، مردم شناسی (بشر پیژندنه) او نژاد شناسي (نژاد پیژندنی) سره نږدې اړیکي لري. برسیره پر اجتماعي علومو، اقتصاد، ریاضي او احصائیې سره هم نژدې اړیکي لري.

## ولې باید اقتصاد وکړو ؟

د اقتصاد علم د انسانانو له یو لړ منظمو فعالیتونو څخه عبارت دی، چې د اړتیا وو د لیری کولو له پاره، د لږ ترلاسه کیدونکو وسایلو څخه په استفاده کولو،

دیو منظم پلان په چوکاټ کې د اقتصادي اصولو په نظر کې نیولو سره صورت مومي. موږ باید اقتصادي عمل وکړو، ځکه چې:

لومړی: د انسانانو غوښتنې او اړتیاوې نامحدودې دي.

دویم: ددې اړتیاوو د لیرې کولو له پاره وسایل او امکانات محدود دي.

له پورتنی ټکی څخه دا جوته کیږي، لکه څرنګه چې د ضرورتونو د لیرې کولو له پاره وسایل او امکانات محدود او ضرورتونه نامحدودي دي، نو باید کوښښ وشي، چې ترممکنه حده پورې په همدغه امکاناتو او وسایلو د انسان زیاتره اړتیا وي لیرې (رفع) شي. په دې صورت کې ویلای شو چې اقتصاد کول عبارت دي د انتخاب کولو څخه.

په هر اقتصاد کې د هغه اقتصادي نظام او سیستم دنه په نظر کې نیولو سره، باید لاندنیو پوښتنو ته ځواب ورکړل شي:

الف- څه شی باید تولید شي؟ یعنې کوم شیان او خدمتونه په کوم کیفیت او شکل او په کومه اندازه په اقتصاد کې تولید شي؟

ب- څرنګه تولید شي؟ یعنې د کومې فني طریقی څخه په تولید کې استفاده وشي، او د تولید د عواملو ترکیب (طبیعت، ځمکه، کار، سرمایه یا پانګه او اداره) او همدارنګه د کار قوه، د کار مواد، (کار وسایل او اداره) څنګه صورت ومومي؟

ج- د چا له پاره تولید شي؟ یعنې په څه ترتیب او په کومه طریقه د هیواد د تولیدات د خلکو په منځ کې وویشل شي، د هغه له جملې څخه په څه اندازه د مصرف د پاره او په کومه اندازه پانګه اچونې ته اختصاص ورکړل شي.

د- تر کومه حد پورې د موجوده منابعو او زیرمو څخه استفاده وشي، یعنې په څه ترتیب موجوده او آینده حقوقو د طبیعي منابعو په اړتیا او اعظمي استفاده ددې منابعو څخه تفکیک او سره توپیر شي.

هـ- ترکومې اندازې پورې باید د تخنیک د استفادې په ساحه کې انعطاف پذیري و منل شي؟ یعنې په کومو وقفو او طریقو اوسنی تولید په وروستي تکنالوژیو بدل کړای شي.

## د اقتصاد د علم ویش:

د اقتصاد علم عمدتاً په دوو مهمو برخو ویشل کیږي: (ملي اقتصاد او تصدي اقتصاد) ، او په دې دوو برخو کښې مربوطي نظریې او سیاستونه ارزیابي او مطالعه کیږي. برسېره پردې باید وواېو چې پولي، کریدتي او تجارتي مسایل، مالي نظریې او سیاستونه هم پراخې تخصصي او تحقیقي څیړنیزې څانګې د اقتصاد د علم په ساحه کې احتوا کوي.

دا جوته ده چې په اوسنۍ زمانه کې په اقتصاد کې د تحقیقي او سنجشي روشونو او میتودونو او همدارنګه ریاضي و احصائیې څخه په پراخه اندازه کار اخیستل کېږي، او اقتصاد یوه لویه او پراخه تحقیقي او علمي ساحه په بر کښې نیسي.

ملي اقتصاد، له هغه علم څخه عبارت دی چې د یو هیواد د سیاسي قلمرو په ساحه کښې تر مطالعې لاندې نیول کیږي، او اقتصادي عمومي مسایل تر ارزیابۍ او مطالعې لاندې نیسي. تولید د ملي اقتصاد له نظره عبارت دی له ځمکې، کار، پانګې (سرمایه) او اداری څخه. تصدي اقتصاد علم، عبارت له هغه علم څخه دی، چې اقتصادي اصول په یوه کارځای کې چې یو اقتصادي واحد (تصدي) دی، تر مطالعې لاندې نیسي. د تولید عوامل د اقتصاد تصدي له نظره عبارت له د کار وسایل، د کار قوه، د کار مواد او اداره او تنظیم څخه دی.

دولت هم یو اقتصادي عامل دی، او د هغه فعالیت د عمومي اقتصاد تر عنوان لاندې مطالعه کیږي. دولت د خپلو لګښتونو له پاره مالیې ټولوې، او خپلو کارکوونکو ته معاش ورکوي. د دولتي اقتصاد د برخي فعالیتونه، هغه فعالیتونه

دی، چې خصوصي تشبثات د هغه په سرته رسولو مایل او قادر نه وي، لکه د بندونو او نهرونو جوړول، هوائي ډگرونه جوړول، بریښنا او تیلفون شبکې او لینونه ایجادول، لارې جوړول او داسې نور.

برسیره پردې د اقتصادي فعالیتونو یوه لویه برخه د انفرادي اشخاصو له طرفه سرته رسیږي، او د بازار د ضرورت لویه برخه او تولیدات او همدارنگه د کالیو (شیانو) خرڅلاو د دې سکتور له خوا سرته رسیږي، چې په اوسني وخت کښې د فعالیتونو یوه لویه ساحه په بر کې نیسي.

## د اقتصادي مسئلو د تحلیل لارې چارې:

اقتصادي څیړنې د اقتصاد د مطالعې په برخه کې زیاتی او یوه د بل بشپړونکې دي. دغه روشونه او تگ لارې نظر په طریقه او طرز د استدلال سره، د تحلیل مقیاس او د وخت و زمان رول په تحلیل کښې تشریح او توضیح کیدلای شي.

## د قیاس روش (Deduction) او د استقرا روش(Induction):

د هغو لومړنیو روشونونه چې اقتصاد پوهانو د اقتصادي قوانینو د کشف دپاره تر استفادې لاندې نیولي دي د قیاس او استقرا روشونه دي.

د منطق له نظره د استقرا روش له هغه طریقې او روش څخه عبارت دی، چې انسان یو قانون او کلي او عام حکم چې د مسلمو اصولو او بدیهیاتو یو جزء دی پر خاصو مواردو جاري کړی او لازمه نتیجه لاس ته راوړي. مثلاً هر شی چې جاذبه قوه ولري، نور شیان ځانته راکاږي، د ځمکې په باره کښې ویلای شو چې ځمکه د جاذبې قوې لرونکې ده، ځکه چې شیان ځان ته جذبوي.

د استقرار روش د قیاس د روش برعکس کوښښ کوي چې په جزئي چارو کښې په مطالعه او اولیدنه او د هغوی د عمل د شکل او نحوې له نظره، کلي او جامع اصول لاس ته راوړي.

په تیرو وختو کې د خاص روش مکتب د تحلیل له نظره تعقیبیده، خو په

او سنیو شرایطو کې مطلوبې نتیجې ته د رسیدو او د اقتصادي قوانینو د کشف په خاطر له دواړو روشونو (قیاس او استقرار) څخه استفاده کیږي. برسېره پردې د اقتصادي مسئلو د تحلیل له پاره د ورانې روش، ریاضي او احصائیوي مېتودونو، او همدارنگه د کوچني او لوی (میکرو او ماکرو) اقتصاد تحلیلي روش څخه او دستاتیک او ډینامیک روشونو څخه هم کار اخیستل کیږي.

ستاتیک (Static) د سکون او عدم تحرک معنی لري. یا په بل عبارت، ستاتیک د اقتصادي متحولینو د بررسی څخه په یو ټاکلي حالت کې، عبارت دی.

ډینامیک (Dynamic) یا متحرک روش په اقتصادي څېړنو کې په مختلفو زمانو کې د عامل زمان د وارد کولو او شاملولو څخه عبارت دی.

د اقتصادي پوهې د تحقیق او مطالعې له پاره د دواړو علومو او پوهې څخه کار اخیستل کیږي.

دویم څپرکی:

# اقتصادي اصطلاحات او مفاهیم

د اقتصاد علم لکه د نورو بشري علومو په شان د خاصو مقولو او اصطلاحاتو درلودونکی دی، او زده کوونکي یې اړدي چې له دغو مفاهیمو او اصطلاحاتو سره آشنائي پیدا او له هغو څخه استفاده وکړي. ددې ټولو اقتصادي اصطلاحاتو او مروجې مقولې د عمیقې او دقیقې مطالعې متضمن دي او د اقتصادي او اجتماعي پرمختیا او دوې سره سم نوي مفاهیم او مقولې په دې عرصه کښې وارد یږي، او هر ورځ دغه مفاهیم او اصطلاحات په دې ساحه کې ورزیاتیږي. سره له دې چې اقتصادي مقولې او اصطلاحات او له هغو څخه استفاده د هر لیکونکي له نظره فرق لري، مګر ځینې اصطلاحات او مقولې په ملي او نړیوالو ادبیاتو او خبري رسینو کې شاملیږي، او د هغو استعمال د ټولنې په ورځنیو چارو کې معمول دی.

په همدې اساس د اړتیا سره سم هڅه کوو چې تر ممکن حده پورې هغه اقتصادي مفاهیم او اصطلاحات چې زیات استعمالیږي دځینو معتبرو منابعو څخه په استفادې سره په لنډه توګه مطرح او توضیح کړو:

## ۱ - د تولید عوامل:

هغه عوامل چې انسان د هغه په مرسته شیان د خپل ضروریاتو د تأمین له پاره تولیدوي، د تولید عوامل بلل کیږي. کولای شو چې د تولید عوامل په دریو ګروپونو وویشو:

- ټول طبیعي شیان، لکه ځمکه، اوبه، دباد قوه، اتم او داسې نور (طبیعت)

- د بشري تولنې کسبي او يا ارثي، جسمي او روحي قوې (کار)

- هغه تول وسايل چې د انسان په واسطه جوړ شوي وي او د نورو شيانو د توليد له پاره ورځخه استفاده کيږي، لکه ماشين، وسايل او آلات وابزار (سرمايه يا پانگه)

## ۲- کموالی (کميابي):

په دې نړۍ کښې چې موږ ژوند کوو، يو قانون د کميابۍ په نامه موجود دی، نو ځکه انسانان بايد د شيانو په توليد کښې د توليد کمياب وسايل په کار واچوي، تر څو وکولای شي د دوی پواسطه، خپل مخ په زياتيدو اړتياوې رفع کړي.

## ۳- بازار:

بازار په اقتصاد کې له مهمو او با ارزښتو مفاهيمو ځخه گڼل کيږي. بازار په اقتصادي معنی او مفهوم په هر رنگه اقتصادي مبادلې اطلاق کيږي. په کلي توگه د بازار له پاره درې ځانگړنې په پام کې نيول کيږي:

لومړی- بازار هغه ځای دی چې پيرودونکی او خرڅونکی يو او بل سره وينې او ليدنه کتنه پکې کوي.

دويم- بازار هغه ځای دی چې په هغه کښې د شيانو او خدماتو مبادله صورت نيسي.

دريم- که چيرې په مخابراتي او تيلفوني شکل هم معاملې سرته ورسيږي، بازار عملاً منځ ته راځي، نو ځکه په دې ځای کې بازار لزوماً د يو خاص ځای او مکان معنی نلري.

## ٤- د عمومي برخې اقتصاد:

د دولت اقتصادي فعاليتونو تشريح او تحليل او يا په بل عبارت پر اقتصاد د لگښتونو عمومي اثرونه او ماليانو، مطالعه او څيړنه د عمومي برخې اقتصاد موضوع ده. البته د دولت اقتصادي فعاليتونه هم هغه موضوع ده، چې د اقتصاد

په عمومي برخه کې د پاملرنې وړ گرځي. د مصرف کوونکي او توليدونکي د ژوندانه پر شرايطو باندې، د دولت د فعاليت اثرونو تحليل د اقتصاد عمومي برخې موضوع تشکيلوي.

د دولت فعاليتونه د خلکو او ټولنې په ورځنې ژوندانه باندې تاثير لري. مقررې او قوانين، ادارې، تصميمونه، اقتصادي سياستونه، لکه د منابع تخصيص، اقتصادي ثبات او د شتمنۍ ويش په مجموع کې د دولت فعاليتونو پورې اړوندې دي، چې د عمومي برخې په ساحه کې تر مطالعې لاندې نيول کيږي. يا په بل عبارت عمومي اقتصاد، د عايداتو او شتمنۍ ويش او په وروستي تحليل، اقتصادي ټينگښت تر پاملرنې لاندې نيسي.

## ۵ – د خصوصي برخې اقتصاد:

دغه اقتصاد د مؤسسو او خصوصي افرادو او اشخاصو له فعاليتونو څخه عبارت دی، او په اوسنيو شرايطو کې دغه برخه د مختلفو ټولنو په اقتصادي چارو کې ډېر لويه ساحه احتوا کوي. د دغه اقتصادي عرضې د فعاليت انگيزه د هغه فرادو او اشخاصو خصوصي گټې تشکيلوي چې د توليدي عواملو لرونکي دی. مگر خصوصي افراد او اشخاص د گټې د لاس ته راوړلو له پاره، قسماً ټولنيزې اړتياوې رفع کوي، او په دی لحاظ ټولنيزو گټو ته هم خدمت کوي.

## ٦ – ارزښت:

د اقتصاد په علم کې ارزښت لاندې مفاهيم لري:

۱ – مبادلوي يا تبادلوي ارزښت: په دی معنا چې ارزښت له هغه مقدار څخه عبارت دی، چې يو بل شي سره تبادله کيږي.

۲ – د استعمال ارزښت: دغه ارزښت مفهوم زياتره د يوشي گټورتيا او مطلوبيت افاده کوي، يعنې ديو شي ارزښت نظر په آزاديو او اړتياوو فرق کوي.

او يه ډېر استفادوي ارزښت لري، مگر د هغه مبادلې ارزښت ډېر کم دی.

## ۷- عرضه:

د شیانو (امتعې) او خدماتو هغه مقدار او اندازه ده، چې په یو ټاکلي قیمت پیرودونکي (خریدار) ته وړاندې کیږي. ډیر عوامل د عرضې په ټاکنه کې دخالت لري، لکه د محصول بیه، د تولید د عواملو تأمین او د نورو شیانو بیې.

## ۸- تقاضا:

د ټاکلو شیانو او خدماتو هغه مقدار دی چې په ټاکلي وخت کې په ټاکلي بیه وپیرودلای شي، کله چې د یو شي بیه کمه او ټیټه شي، نو تقاضا هغه ته زیاتیږي، او کله چې د شیانو بیه لوړیږي، دهغو شیانو ته تقاضا کمیږي.

## ۹- تصدي یا کارځای:

د یو تخنیکي، اقتصادي او ټولنیز واحد څخه عبارت دی چې په هغه کښې د تولید عوامل (د کارقوه، دکار وسایل، د کار مواد او اداره) سره یوځای کیږي، او په نتیجه کې د شیانو تولید سرته رسیږي، تولید لاندېنې قسمونه لري:

لومړنیو موادوتولید: د نیم کاره موادو تولید اود کار تمامو ادوتولید.

## ۱۰- ټولنیز (اجتماعي) تولید:

د یو ملـي اقـتـصـاد د شیانـو او خـدمـاتو له مجمـوعې څـخـه عبارت دی چـې، په یـو ټـاکل شـوي وخت (معـمولاً یو کال) کښـې مـنځ تـه راځي او په پیسو (پول) افاده کیږي.

## ۱۱- ملي شتمني او پانګه:

په یوهیواد کښې د ټولې منقولې او غیر منقولې شتمنۍ پولي ارزښت په یو ټاکلي وخت او زمان کې ملي پانګه بلل کیږي.

## ۱۲- ملي عاید:

په یو اقتصاد کې د یو هېواد د اوسیدونکو د لاس ته راوړل شوي عوایدو مجموعه ده چې، د مختلفو تولیدي عواملو پواسطه یې تحقق موندلی، او دهغه

متشکله عناصر او اقلام عبارت دی له مزد او معاشه څخه، انفرادي خالص عاید، کرایه او اجاره، د اسهامو گټه، د سرمائې گټه، ناتقسیم شوي گټې او پر مؤسساتو باندې مالیې.

## ۱۳- عاید:

د اقتصاد د علم له نظره هغه پولي حاصلات یا نورې مادي گټې چې د شتمنۍ د په کار اچولو په نتیجه کې او د خدمت په اثر منځ ته راغلې وي، عاید بلل کیږي.

د محاسبې له نظره عاید د یوې تصدي یا یو شخص د ټولو پولي وارداتو څخه عبارت دی.

## ۱٤- سوداگري (تجارت):

د شیانو او خدماتو له پیرودلو او پلورلو څخه عبارت دی چې مخصوصاً په یوه لویه ملي او نړیواله پیمانه صورت نیسي.

## ۱۵- تجارتي معاملې:

سوداگر یا غیر سوداگر کسان چې منقول مالونه او شیان چې نورو ته د خرڅلاو یا اجاره ورکولو په مقصد پلوري او هغه منقول شیان د هغه په اصلي حالت یا په بل شکل تبدیلوي او هغه خرڅوي او یا یې اجاره ورکوي، د غه خرڅلاو او اجاره ورکول، د تجارتي معاملو له جملې څخه گڼل کیږي.

## ۱٦- سوداگر:

هر هغه شخص که افراد وي یا شرکتونه چې، د تجارتي اهلیت درلودونکي وي، او پخپل نوم یې یوه یا څو تجارتي معاملې سرته رسولې وي، او د غه دنده یې خپل دایمي پیشه او کسب گرځولی وي، سوداگر ورته ویل کیږي.

## ۱۷- تجارتخانه:

تجارتخانه له هغه ځای څخه عبارت دی چې سوداګر خپل تجارتي فعالیتونه له هغه ځایه څخه اجراء کوي، او ددې غوښتونکی وي چې د هغه له ګټې څخه برخمن شي. تجارتخانه د مادي (سامان او وسایلو) او غیر مادي (دکرائی د تجدید حق، نوم او عنوان د تجارت خانې او داسې نور) عناصرو لرونکې ده.

## ۱۸- مالیات او عوارض:

مالیات هغه مبلغ دی، چې خلک، شرکتونه، او مؤسسات یې له قانون سره سم د دولت د مالي بنسټ او د عمومي مخارجو د تأمین له پاره اخلي. د مالیاتو بله ستره ځانګړنه داده چې د مالیې د اندازې او د عمومي خدماتو ارزښت په منځ کښې چې مالیې ورکوونکی له هغه څخه برخمن کیږي دوه اړخیزه رابطه وجود نلري.

## ۱۹- بیه (قیمت):

بیه یا قیمت، پولي جنبې یا د امتعی (شیانو) یو مقدار چې د هغې په مقابل کې د بلې امتعې یو واحد مبادله کیدای شي. قیمت د یو شی (متاع) د اساسي خصوصیت او د شیانو ذاتي ارزښت بیانوونکی دی. بیلا بیلو شیانو د قیمت تیاکل په اقتصاد کښې، د بازارونو په چوکاټ او محدوده کې ترسره کیږي.

د قیمت په تیاکلو کې د تولید لګښتونه، ضرورتونه او بازار اغیز لري.

## ۲۰- سود، منفعت او ګټه:

د نظري اقتصاد د علم په اصطلاح کې د یوې تصدی د عوایدو د پاتې برخه ده، د سرمائې د ګټې د تادیې، د ځمکې اجاره او د کار مزده څخه وروسته چې کار فرما پورې تعلق نیسي. د محاسبې په اصطلاح کې سود یا منفعت د پانګې زیاتوالی د یوې تصدې د فعالیت په نتیجه کښې ده.

خالصه ګټه (نفع) د خرڅلاو د قیمت او د مالیې د عوارضو دور کړې (تادیی) په منځ کې له تفاوت څخه عبارت دی.

## ۲۱ - سبسايدي:

توليدنکی او مصرف کوونکی ته هغه بلا عوض کمکونه دي، چې د قيمتونو د سطحې د ټيټ ساتلو يا د يو ټاکلي شي د توليد د جريان ساتلو او خوندي کولو له پاره ورکول کيږي.

## ۲۲ - د سهام بازار:

هغه بازار يا مارکيټ چې په هغه کښې بيه لرونکی پاڼې پلورل کيږي او خرڅيږي، د سهام بازار نوميږي. د نړۍ په ډير و هيوادونو کښې، مخصوصاً په پرمخ تللي صنعتی هيوادونو کښې بورس او بازار ډير اهميت لري. د بازار او بورس اهميت په دې کښې دی، چې د پس انداز او پانګې اچولو عملونه آسانه کوي. يعنې له يوې خوا د پانګې اچولو امکان منځ ته راوړي او له بلی خوا، د سهمونو په عرض سره د ضرورت وړ سرمايه برابروي، او برسبېره پردې، خصوصي پس اندازونه (سپما) په مولدو پانګې اچونی کې په کار اچوي.

## ۲۳ - ثروت، پانګه او مال:

د مختلفو شتمنيو د اقسامو زيرمې چې د هر اقتصادي واحد له خوا ساتل کيږي، د هغه د درلودونکي له پاره عايد ايجاد وي او يا د عايد د ايجادولو ظرفيت لري. شتمني کولای شي ځانته مختلف شکلونه ونيسي، لکه نقدې پيسې، بانکي امانت، پور (قرضه)، سهمونه او داسې نور د مالي شتمنی ډولونه.

## ۲٤ - د بهرې نرخ او حاصل:

د پيســی (پول) په خدمت کې نيـولو بيـه، د پيسو د يو ټاکلي مبلغ يوه برخه چې د يو ټاکلـي (معينې) دورې له پاره چې د يو لاس ته راوړل شوي پور (قرضی) په مقابل کې ورکول کيږي.

د ګټې نرخ په واقعيت کې د قرضې (پور) لاس ته راوړلو قيمت دی چې په پور اخستونکی يې ورکوي. په همدې اساس د ګټې نرخ هغه عامل دی چې د پيسو

انتقال د پور اخستونکی او پور ورکوونکي تر منځ آسانه کوی، په دې قسم چې پور اخستونکی د پوریا قرضی د لاس ته راوړلو او هغه رضایت چې لاس ته راوړل شي مبلغ ده ته ایجادوي، د غه ګټه او حاصل د پیسې خاوند ته ورکوي، په مقابل کې پور ورکوونکی د خپلوتادیه شویو پیسو په مقابل کې د یو ټاکل دوری د پاره مکافات لاس ته راوړي چې هغی ته د حاصل نرخ وائي.

## ۲۵ - تولید:

هغه فعالیتونو ته چې په وروستني تحلیل کښې د مطلوبو شیانو یا خدمتونو لاس ته راوستلو سبب ګرځي، تولید ویل کیږي، تولید د اړتیاوو سره سم صورت نیسي، په دې شکل چې تولید شوی محصول کولای شي د انسان داړتیا وو یوه برخه رفع او له مینځه یوسي.

## ۲۶ - پلان، برنامه او طرح:

پلان عبارت له هغې وسیلې څخه دی چې، د هغه پواسطه د تولید عوامل (ځمکه، کار او سرمایه) او (د کار وسایل، د کار مواد، د کار قوه او اداره) د هغو هدفونو له پاره چې مخکې دیو ارګان (دولت) له خوا ټاکل شوي دي په کار اچول کیږي.

پلان دیو اقتصادي تصمیمګری مرکز د نوښتونو، برنامو او طرحو د ملي یا تصدی اقتصاد په سطحه یوه مجموعه ده، په دې حالت کولای شو په مختلفو سطحو د پلان طرحي ته اقدام وکړو.

په یو پلان کښې ټول هدفونه او قدامونه یاد داشت، او ممکنه وسایل د اهدافو د سرته رسولو له پاره په نظر کې نیول کیږي.

## ۲۷ - د سراني عاید:

د سراني عاید په یوه زماني دوره کښې د یو هیواد د ملي عاید تقسیمولو څخه د نفوسو پر تعداد باندې لاس ته راځي.

## ۲۸- پیسې:

پیسې یوه عامه منل شوې وسیله د راکړې او ورکړې (تبادلې) د تادیې، د شیانو د ارزښت تاکل او حسابي واحد په منظور وي.

پول یو قانوني طلب دی او د دغه طلب همیش د فعالیدو لرونکی دی. د فعالیدو څخه هدف په اجتماعي محصول باندې د کمي او کیفي له نظره قانوني طلب څخه دی. پیسې (پول) د تبادلې د وسیلې، د ارزښت معیار، د ذخیرې وسیله، او د ارزښت د ساتلو وسیله پیژندل شوی دی.

## ۲۹- بانک:

بانک یوه عامه ضطلاح ده، چې په مختلفو اشکالو فعالیت لري، چې زیاتره د امانت ایښودلو، تنزیل، پانګه اچونه، پور ورکول، د بانکنوټونو خپرونه، او د رنګارنګ خدمتونه ترسره کول په غاړه لري.

## ۳۰- تنزیل:

هغه مبلغ دی چې د یو پور څخه یا د یوې حوالې څخه د ژر تادیه کولو په نسبت وضعه کیږي، او یا هغه مبلغ چې د تجارت سند،لکه حجت او داسې نورو د پولې قیمت څخه مخکښې لاس ته راځي، اخیستل کیږي (د وجهی قیمت او د بازار قیمت تر منځ تفاوت). چې عمدتاً بانکونه او مشابه مؤسسې دا رنګ معاملې سرته رسوي.

## ۳۱- د پیسې (پول) شبه:

هغه شتمنې او دارائي چې لکه د پیسې په شان کولای شي د ارزښت د ساتلو د معیار په نوم ور څخه استفاده وشي، د پول (پیسې) شبه بلل کیږي. باید وویل شي چې ددې څخه د مبادلو د سهولت ورکوونکي عامل په توګه استفاده نشو کولای، لکه د قرضې د اسنادو پاڼې، د پس انداز د حسابونو ډولونه، چې دارنګې شتمنۍ په اسانۍ د پیسو (پول) سره د تبدیل وړ دي.

### ٣٢- شرکت:

شرکت عبارت د هغه قرار داده څخه دی، چې د هغه پواسطه دوه یا څو کسه موافقه وکړي، چې یو شی په ګډه تر عمل لاندی ونیسي، یو شمیر هدفونه تعقیب او هغه ګټه چې د هغې څخه لاس ته راځي، په خپل منځ کې وویشي.

### ٣٣- تعاوني شرکت:

هغه شرکت چې د غړیو او شریکانو په پانګه منځ ته راغلي وی، او ګټه یې د مالي ذخائرو د پاره د مصارفو او مبالغو د کسر په پام کې نیولو څخه وروسته، د غړو او برخه والو په منځ کې ویشل کیږي.

### ٣٤- څو ملتي شرکتونه:

د هغه شرکت یا د تولیدی واحدونو مجموعه چې، د نړۍ په یو تعداد زیاتو هیوادونو کې او د مختلفو شیانو په تولید او خدماتو کې د خپل هیواد څخه بهر کار او فعالیت کوي، څو ملتي شرکتونه بلل کیږي. دا رنګه شرکتونه لږ تر لږ ٢٥ فیصده خپل تولید په نورو هیوادونو کې سرته رسوي.

### ٣٥- انحصار:

هغه بازار دی، چې په هغه کې یو عرضه کوونکی او یا تولیدونکی وجود ولري. انحصاري بازار د درې اصلي ځانګړتیاوې لري:

لومړی - په تولیدکښې د تصدیو مشارکت اصلي انګیزه، ګټه ده.

دویم- بل تولیدونکی وجود نلري.

دریم- تولیدونکی د بیې ټاکوونکی هم دی.

### ٣٦- د پیسو عرضه:

په یو اقتصاد کې د نقدي شتمنۍ مجموعه ده، چې کولای شو هغوی په ضروري شیانو او خدمتونو تبدیل کړو، نه یوازې پیسې، بلکه امانتونه، حوالې او کریدتي سندونه هم په هغه کې شامل دي.

## ۳۷- د پیسو بازار:

هغه مالي مؤسسې دي چې په هغه کې د لنډ وخت بیه لرونکې پاڼې، د لنډې مودې پورونه د سره زر (طلا) پیرودل او رانیول او د اسعارو مبادله سرته رسیږي.

## ۳۸- پولي سیاست:

د مرکزي دولت سیاستونه، چې د مرکزي بانک له لارې د موجودو پیسي مقدار په اقتصاد کې، د بهرې نرخ، د داخلي پیسې (پول) د مبادلې نرخ د خارجي اسعارو په مقابل کې سرته رسیږي، پولي سیاستونه بلل کیږي.

## ۳۹- د پولي سیاستونو هدفونه:

د پولي سیاستونو اهداف د ماکرو یالوی اقتصاد د اهدافو مجموعه احتوا کوي. دغه هدفونه عبارت دي له: د اقتصاد دوامدار وده، د پیسو د رانیولو (خرید) د قدرت ثبات، د تادیاتو د بیلانس تعادل ایجادول، د بیو د سطحې ثبات، او بالاخره د پانګې آچونې پر سطح نفوذ.

## ٤۰- پولي پایه:

په یو اقتصاد کښې نقدي مالي زیرمې دي، چې معمولاً د کاغذي او مسکوکو پیسو په شکل په دوران کې وي.

## ٤۱- تجارتي بانکونه:

تجارتي بانکونه هغه مؤسسې دي، چې مختلف مالي خدمتونه سرته رسوي، لکه د مبادلې حوالې، د برات سندونه قبلول او منل، طلباتو نقدول، پور ورکول، د بیې لرونکي پاڼو سهمونه او قرضي نشرول، خرڅول او پېرودل، او په پای کښې د بانکي خدمتونو یوه برخه سرته رسول، چې ځینې وخت دغه بانکونه مؤسسو ته پولي پورونه هم ورکوي.

## ۴۲- بازار موندنه:

په کلي توګه، خرڅلاو، توزیع، تبلیغات، د خرڅلاو تشویق، د تولید پلانګذارۍ عملیاتو او فعالیتونو ته بازاریابي وایي. یا په بل عبارت بازار یابي هغو عملیاتو ته ویل کیږي، چې مستقیماً مصرف کوونکي او دقیقه ارزیابي د بازار د ضرورتونو څخه او د دغه ضرورتونو انعکاس تولیدي مرکزو ته تر سره کوي.

## ۴۳- نړیواله سوداګري:

د یو هیواد او نور نړیوالو هیوادو په منځ کې د شیانو او خدمتو تبادله ده. د دې مبادلې د بر قرارولو دلیل د نړۍ د مختلفو هیوادو په منځ کې د بیلابیلو شیانو او خدمتو د تولید او مصرف توپیر دی. برسیره پردې د اقتصادي سوکالۍ زیاتوالی په هر هیواد کې د تنوع د ایجاد او لاس ته راوړلو له لارې په موجوده شیانو او خدماتو د لګښت د پاره دی.

## ۴۴- بیمه:

هغه قرار داد دی چې د هغه پر اساس بیمه شوی د یو ټاکلي مبلغ په مقابل کې بیمه کوونکي ته، خپله پانګه د غیر مترقبه حوادثو په مقابل کې بیمه کوي، او بیمه کوونکی وعده کوي چې د حادثې د واقع کیدو په صورت کښې یوه برخه یا د بیمه شویو ټول ادعا شوی مبلغ د لومړي قرارداد په اساس، چې د دواړو خواوو په منځ کښې عقد شوی دی، تادیه کوي.

## ۴۵- پړسوب (تورم):

د تورم په دوره کې، قیمتونه لوړیږی، او د پیسو واقعي ارزښت کمیږي، په حاد تورم کې قیمتونه په چټکتیا سره لوړیږي او د پیسو ارزښت په شدت سره کمیږي، چې په دې حالت کښې به جنسي مبادلې د بازار ډیرې ښې مبادلې وي.

## ۴۶- پانګه (سرمایه):

پانګه یا سرمایه د تولید له مهمو عواملو څخه دی، او له هغه شتمنۍ څخه متشکله ده، چې د هغه څخه عاید لاس ته راځي او په پولي حساب افاده کیږي.

معمولاً د پانګې (سرمایې) اصطلاح د سرمایوي اموالو سره په مترادفه توګه استعمالیږي. ځنې وخت پانګه په پولي پانګه او تملکي پانګه تشخیص کیږي. د پولي پانګې اندازه د سرمایې هغه برخه ده چې د پول یا بانکي امانت په شکل ساتل شوې وي. او تملکي سرمایه، د سرمایې هغه برخه ده، چې د تملک د سند په شکل، لکه سهمونه، دګروي او قرضې سندونه موجود وي.

په محاسبه کې پانګه (سرمایه) هغه مبلغ ته وایي چې، په یو کسب او کار کښې پانګې اچونې شوې وي، په اقتصادي تیوری کښې، سرمایوي مالونه، هغه تولیدی اجناس دي، چې د زیات تولید یا دنوي تولید له پاره په کار اچول کیږي.

## ٤٧ - پانګه اچونه:

د پیسو (پول) تبدیلولو هغه رنګ ملکیت ته، چې دوام ولري او ګټور وي، لکه د قرضې د سندونو او نور ملکیتونه پلورل، چې امید کیږي، اصل یې مصئون او رضایت بخشه عاید ترې په لاس راځي. په اقتصادي نظریو کښې د پانګې اچولو څخه مقصد د پولي پانګې څخه په استفادې سره تولیدي وسایل لاس ته راوړل دي، او د خرڅلاو وړ مالونه هم په بر کښې نیسي. په بل عبارت پانګه اچونه، په واقعي توګه پانګې ثبات، لکه تولید یا تعمیر، ماشین او آلات، او ساختمانونه جوړول دي، او دشیانو او کالیو د تمرکز بیانوونکی دي، چې پخپله مختلف شیان (امتعه) او خدمات دوروستنیو لګښتونو له پاره تأمینوي.

## ٤٨ - پولي انقباض (ډیفلاسیون):

د دیفلاسیون څخه هدف د قیمتونو د سطحې ټیټیدل دي، او دا حالت هغه وخت کې منځ ته راځي، چې د پیسو (پول) حجم او اندازه د عرضه شوي اجناسو او خدماتو په نسبت په یوملي اقتصاد کښې لږه وي، او یا د ځینو علتونو په اساس په لګښت کې لږوالی راغلی وي، او په دې حالت کې د پیسې د دوران چټکتیا کمه شوې وي، او دیفلاسیوني حالت منځ ته راځي.

## ۴۹- صادرات:

هغه شیان او خدمت دي، چې په یو هېوادا کښې د خرڅلاو د پاره د نورو هیوادونو په بازارونو کښې تولیدیږي، او د صادراتي شیانو، صادرونکی هېواد نورشیان او خدمات، سره زریا اسعار لاس ته راوړي.

## ۵۰- واردات:

واردات عبارت دي د سوداګرۍ د مال را نیول له باندنیو هیوادو څخه او یا هغه شیان چې له بهر څخه هیواد ته راځي، او یا په بل عبارت د یو هیواد تولیدي او خدماتي شیانو جریان بل هیواد ته د مصرف او کار اخیستلو په منظور واردات بلل کیږي. په اوسني وخت کې د نړۍ هیوادونه تر زیاتې اندازې پورې په نورو هیوادونو کې تولید او ایجاد شوي شیان (مالونه) او خدمات مصرفوي.

## ۵۱- ناخالصه ملي تولید:

د داخلي ناخالصه تولید مجموعه او ټول عوایدچې د هیواد د اوسیدونکو د اتباعو د پانګې اچونې څخه په خارج کې اوهم ټول عوایدچې د نورو هیوادونو د اوسیدونکو (اتباعو) د پانګې آچونې په نتیجه کې په مورد نظر هیواد کې لاس ته راځي، ناخالصه ملي تولید تشکیلوي.

## ۵۲- مالي سیاست:

هغه سیاست چې حکومت د اداري او بقیني معاملو د مالېې ورکولو، عامه قرضه، پیسې، تخصیصي، او عامه لګښتونه، ددغسې فعالیتونو تاثېر په کسب او کار او ملي اقتصاد په ارتباط ایجادوي، د مالي سیاست په نامه یادیږي.

## ۵۳- اقتصادي بسیا کیدنه:

د مناسبو سیاستونو او تدبیرونو اتخاذ، اقتصادي خود کفائی هدف ته د رسیدو په مقصد په هغه صورت کې چې یو هیواد وکولای شي، د خپل اړتیاوو یوه لویه برخه په هیواد کې دننه، او له داخلي امکاناتو څخه په استفادې سره تولید کړي.

## ٥٤ - اقتصادي سياست:

دغه موضوع په کلي توگه د دولت په دخالت د ټول اقتصاد د اصلي اهدافو په لاس ته راوړنه اطلاق کيږي. د اقتصادي سياستونو کلي اهداف له لاندينو موضوعاتو څخه عبارت دي: د اقتصاد دوامداره وده، د قيمتونو د سطحې تثبيت، د پيرودلو د قدرت ساتنه، په اقتصاد کې د بشپړ برلاسي ايجادول، او په پای کې د شتمنيو د عوايدو مطلوبه توزيع او وېش.

## ٥٥ - اقتصادي پرمختگ:

اقتصادي پرمختگ دننني او باندينيو (دروني او بهرونی) عواملو څخه په استفادې سره؛ له اقتصادي ترقۍ او تکامل څخه عبارت دی.

له اقتصادي پرمختگ څخه هدف، له اقتصادي ودې څخه برخمن او مستفيد کيدل، او هغه رضامندي ده، چې د اقتصادي او ټولنيزې ودې او پرمختگ څخه لاس ته راغلي ده.

## ٥٦ - کريدت، اعتبار:

د شيانو (مالونو)، د خدماتو مالکيت، بې له سمدلاسه او فوري پرداخته او په آينده کې د استفادې حق ورکول کريدت نوميږي.

## ٥٧ - لگښت:

د شيانو او خدمتونو په کارولو د انسان د غوښتنو د رفع کولو، يا په بل عبارت له موجوده منابعو څخه د اوسني او جاريه اړتياوو د رفع کولو په منظور استفاده کول لگښت بلل کيږي.

د احصائيې له نقطه نظره د کورنيو، خصوصي شرکتونو او بالاخره جاري مخارجو د ټولو مصارفو څخه، د عمومي برخې جاري مخارج لاس ته راځي.

د عايد او مصرف په منځ کې رابطه دا رنگه ده چې، که څومره عايد زيات شي لگښت هم زياتيږي.

### ۵۸ - چک:

چک یوه لیکلې حواله ده، چې معمولاً په بانک کې د یو امانت ایښودونکي له خوا صادریږي، او بانک ته اجازه ورکوي چې یو ټاکلي مبلغ هغه شخص ته چې په نوموړې حواله کې یې نوم لیکل شوي وي، ورکړي.

### ۵۹ - چکي اعتبار:

یو له هغو خدماتو څخه دی، چې ځینې بانکونه یې د مشتریانو له پاره بربروی، په دې معنی چې یو مبلغ د کریدت (اعتبار) په نوم د مشتري له پاره تعینوي، او مشتري د چک په ایستلو، له دې حساب څخه کله کله برداشت کوي او په ټاکل شوې توګه دوخت او زمان له نظره، خپله قرضه بانک ته مجدداً تادیه کوي.

### ۶۰ - اعتباري امانتونه، چکي پیسې:

هغه پور چې یو بانک امانت ایښودونکی ته د یو مبلغ د زیاتولو په وسیله د هغه دارائي په حساب کې بانک ته ورکوي، او بیا نوموړی مشتري د چک په اهداکولو سره له هغې څخه ګټه اخلي.

### ۶۱ - د چک په وسیله معامله:

هغه روش چې د هغه په اساس یو شرکت چک یا یو د اعتبار سند خرڅوي او پیرودونکی موافقه کوي، د قسطونو او دهغې د حاصل (بهرى) په منظمه تادیه او پرداخت، خپل طلب لاس ته راوړي، او له بلې خوا څخه پیرودونکی (خریدار) خپل چک په ټاکلو خرڅلاوځایونو کښې په شیانو (کالیو) تبدیلوي.

### ۶۲ - بودجه:

بودجه په واقعیت کې دعوایدو او لګښتونو براورد دی د وروستی او راتلونکی دورې له پاره، نو ځکه بودجه د جاري حسابونو د ساتنې وظیفه په غاړه نه لري، بلکې دعوایدو د حاصلولو او مصرف طرح او پلان په آینده کې وړاندې کوي.

## ٦٣- د قرضي سند:

د قرضي پاڼې دیو ډول بیې لرونکې ځانګړې پاڼې دي چې، د بهرۍ (حاصل) په ثابت نرخ، د مرکزي دولت، یا محلي دولتونو، شرکتونو، بانکونو، او نورو مؤسسو له خوا نشریږي.

## ٦٤- تجارتي بیه لرونکې پاڼې:

د لنډې مودې د تبادلې ورځني مختلف سندونه چې، د پیسو (پول) یو ټاکلي مبلغ تادیه کولو تعهد په یو ټاکلي او معین مدت او ځای کوي، لکه حجت، تجارتي حوالې، تجارتي قبولي ګانې او داسې نور، چې د انتفاعي مؤسسو او شرکتونو له خوا صادریږي. په بانکدارۍ کې هغې قرضي چې د مالونو او شیانو د خریدارۍ په معاملو کې منځ ته راځي، په بیه لرونکو پاڼو کې شاملیږي.

## ٦٥- بانکي قرضې:

بانکي قرضې هغه پیسې دي، چې تجارتي بانکونه یې د یوې مشخصې زمانې دورې له پاره د تجارتي او اقتصادي او همدارنګه ساختماني فعالیتو له پاره خپلو مشتریانو ته ورکوي.

## ٦٦- پشتوانه، د کاغذي پیسو پشتوانه:

هغه اندازه سرزر، اسعار او بیه لرونکي سندونه چې له قانون سره سم یو مرکزي بانک د کاغذي پیسو په مقابل کښې باید ولري. هر کله چې یوه برخه د خپرو شویو کاغذي پیسو (بانکنوټونو) د سره زرو پشتوانه ونلري، هغه ته اعتباري پیسې وائي.

## ٦٧- پس انداز:

د پس انداز اصطلاح په لاندنیو معناوو او مفهومونو په کار ول کیږي:

۱- د پیسو یا مادي اجناسو د زېرمه کولو عمل د راتلونکي استفادې لپاره.

۲- د پیسو جریان یا هغه منابع چې په ټاکلي مدت او زمان کښې د دغسې عملیې پواسطه تولیږي.

۳- د سپما (صرفه جوئي) کولو عمل د منابعو د استفادې په طرز او روش کې او د منابعو اقتصادي ساتنه او څارنه.

٤- هغه منابع چې د سپما (صرفه جوئیي) او ساتنې او څارنې په اثر منځ ته راغلې وي. د اقتصاد په علم کې زیاتره پس اندازونه د پیسو (پول) په شکل د توجه وړ واقع کیږي.

## ٦٨- د تادیاتو بیلنس ،د پرداختونو ترازو:

د یو هیواد مجموعي تادیات باندنیو هیوادونو او د باندنیو (خارجي) هیوادونو د تادیاتو مجموعې ته په یو ټاکلي وخت کښې د تادیاتو بیلانس وائي. په حقیقت کې دغه بیلانس له خارجه سره د راکړې او ورکړې معاملو یوه لنډ فهرست دی چې، په پیسو ښودل کیږي.

دغه ورکړه او راکړه عبارت د سره زر، ټول مال التجاره او خدمات لکه کرایه او تادیات، د انتقالاتو لګښتونه، پانګې، قرضې او د هغې دربحې پرداخت دی. د یو هیواد د تادیاتو بیلانس یوه برخه ،له یو یا څو هیوادونو سره د هغه د اقتصادي رابطو محدوده دی، او یادا چې د هغه اقتصادي اړیکې د ټولې نړۍ سره دي.

## ٦٩- د تجارت بیلانس، د تجارت تله :

د صادراتو د مجموعي ارزښت، د یو هیواد د وارداتو د ارزښت په مقایسې سره دی، همدارنګه د یو ملي اقتصاد دوارداتو او صادراتو د پولي ارزښت په منځ کښې تفاوت ته د تجارت بیلانس وائي.

## ۷۰- بیلانس:

د بانګو او ورکړو یو لنډ فهرست په یو ټاکلي تاریخ کښې چې خلص کسریا زیاتوالی هم ښیې.

په محاسبه کښې د حساب باقي په معنی استعمالیږي.

## ۷۱- بشپړه سیالي (رقابت):

د مختلفو صنایعو د جوړښت نمونه په یو اقتصاد کې، چې له هره جهته د یوشي د عرضه کوونکي یو زیات تعداد دېو او بل سره رقابت لري. د کامل رقابت بازار د مشخصو خصوصیتونو لرونکی دی چې هغه عبارت دي له:

۱- په هر صنعت کې تو تعداد زیاتې کوچنۍ تصدۍ فعالیت لري، او د هغه د هریو سود هغه وخت زیاتیږي، چې د تصدي د نهائي لګښتونو او یا قیمت معادل وي، د کوچنیو تصدیو د ابعادو په علت او د هغه زیاتوالی، تصدي ګانې به نشي کولی، چې د بازار پر قیمت تاثیر واچوي.

۲- د ټولو تصدیو هدف - د هغوی دګټې زیاتوالی دی.

۳- تصدیګانې کولای شی، بې له دې چې لګښتونه وزغمي، په ټاکل شوي صنعت کې داخل او یا له هغه څخه خارج شي.

٤- د معاملې وړ شیان (مالونه) یوشان او مشابه دي.

## ۷۲- اجاره:

د یو شخصي ملکیت د تصرف په منظور قرار داد دی. دغه قرار داد ممکن دی په مؤقتي توګه د یو ټاکلي وخت له پاره وي، یا د اجاره کوونکي د ټول عمر له پاره وي.

## ۷۳- استخدام:

استخدام د تولید د عواملو د په کار اچولو مفهوم لري، چې د ملي عاید او اجتماعي محصول د ایجادولو سبب ګرځي. برسیره پردې مصروفیت او اشتغال په یوه دنده او مسلک، او همدارنګه په کسب او کار کې هم استخدام ګڼل کیدای شي.

## ۷٤- اقتصادي عمومي اهداف:

اقتصادي عمومي اهداف، د لنډې مودې اهدافو (د استخدام د سطحې لوړول، د پیسو د ارزښت ثبات، د تادیاتو د بیلانس توازن)، او اوږدې مودې اهداف (اقتصادي انکشاف، د منابعو څخه معقوله استفاده، د عاید عادلانه ویش، او د کار د ساعتونو کموالی، د فراغت د ساعتونو زیاتوالي) څخه عبارت دی.

## ۷۵- کار:

د انسان له فکري او جسمي فعالیت څخه عبارت دي چې د اړتیا وو د له منځه وړلو او د عوایدو د لاس ته راوړلو له پاره سرته رسیږي. کار د یو ځواک په توګه له جسمي او فکري استعداد څخه د استفادوی ارزښت د ایجادولو په غرض تعریف شوی دی. د کار عاید د کار د مزد یا اجورې په نوم یادیږي.

## ۷٦- تولیدي ظرفیت:

په یو ټاکلي وخت کې د وسایلو د تولیدي قوې د کمیت او کیفیت له نظره تولیدي ظرفیت بلل کیږي. څرنګه چې په هره تولیدي پروسه کې یوه اندازه پیسې مصرفیږي، نو ځکه د هغه د ګټې ربح او د وسایلو د فرسایش مبلغ، پر تمام شوي لګښت باندې اغیزه لري.

## ۷۷- برات:

عبارت له هغه سنده څخه دی چې، د هغه په اساس یو سړی بل سړي ته دستور ورکوي چې د هغه په رویت تریو ټاکلي او معین وخته د دریم ګړي سړي په وجه، یا د هغه پر حواله کې ټاکلي مبلغ ورکړي.

## ۷۸- تجارتي حجت:

تجارتي حجت له هغه سنده څخه عبارت دی چې، د هغه پواسطه لاس-لیک کوونکی د هغه پرځای چې دوجهې پرداخت ټاکلي مودې د رسیدو سره سم دریم ګړي ته ورکړي، پخپله تعهد کوي.

## ۷۹- پروژه:

پروژه عبارت د فعالیت یا د اقتصادي فعالیتونو مجموعه ده چې، د یو واحد په حیث، پلانګذاري، تمویل او د هغه تطبیق له یوې خوا څخه لګښتونه ایجابوي، او له بلې خوا د هغه څخه د حاصل توقع هم کیږي. یوه پروژه د اقتصادي فعالیتونو مجموعه ده، په یو ټاکلي وخت کې، د یو مشخص مقصد او یا مقصدونو څخه، د یو یا څو مخصوصو هدفونو د رسیدو په خاطر شروع، او په یوه مشخصه دوره کې پای ته رسیږي.

## ۸۰- امانت:

امانت په اقتصاد کې عموماً د شیانو، پیسو او یا د نورو مشخصو اموالو او شیانو انتقال ته وایي، چې له یو شخص څخه بل شخص ته، د قرار داد په اساس او د ساتنې یا بل کوم مشخص مقصد او هدف په منظور صورت نیسي.

## ۸۱- د لنډې مودې امانتونه، لنډمدته سپارل شوی:

هغه امانتونه چې د لنډې مودې مخکینی خبرتیا په اساس اخیستل کیدای شي.

## ۸۲- میعادي امانتونه:

هغه امانتونه چې د پس انداز په بانکونو کې اینبودل کیږي، او د هغه ترلاسه کول په یوټاکلي شوي وخت کې مخکینۍ خبرتیا ایجابوي.

## ۸۳- بانکي امانت، بانکي سپارل شوې:

د پیسو د یو ټاکلي مبلغ د اخیستو حق له یوه بانکه څخه، چې دغه حق د پیسو د معادل مبلغ یا نورې اسعارې یا بانکي قرضې د مخکینۍ تادیې په اثر ایجاد شوې وي، دغه حق او د هغه معادل پیسې بانکي امانت بلل کیږي.

## ۸٤- ګټه، ربح، ټکټ پولي:

هغه مبلغ دی چې د سرمایې د استعمال په عوض تادیه او حسابیږي، دغه مبلغ معمولاً د نرخ یا د سرمایې د فیصدي د حساب له رویه مطرح کیږي.

## ۸۵- اقتصادي نظام، اقتصادي سیستم:

د اقتصادي ژوند له ماهیته څخه عبارت دی، په ځانګړې توګه د طرز تملک ، د ملکیت استعمال او د کنترول حدود او د حکومت د مداخلې له لحاظه.

## ۸٦- د جاري حساب قرضه:

دا قرضه د بانک له مروجې قرضې څخه شمیرل کیږي، چې تجارت او صنایعو ته ورکول کیږي او په نننیو معاصرو اقتصادي معاملو کنبې ورڅخه زیاته استفاده کیږي.

دریم څپرکی:

# د اقتصادي نظریاتو تاریخي بهیر

## د لرغوني دورې اقتصادي پیش بیني او نظریې:

د انساني او بشري تمدنونو د منځ ته راتلو په پیل کې، اقتصادي فعالیتونه له هغې سره موجود وو، او انسان د خپلو ټولنیزو مسئلو په سرته رسولو کې، ځینې عامې اقتصادي قانونمندۍ مراعت کړي دي.

په تیرو زمانو کې، اقتصادي قوانین د دین او اخلاقو د اصولو جزء وو، او ټولنیز قوانین د دې ارزښتونو پرېنسټ تنظیم شوي وو.

له میلاد څخه مخکښې په څلورمې او پنځمې پېړیو کې، د یونان ښارونه د نړۍ د نورو ځایونو او سیمو څخه آباد وو، او تبادله، تجارت او د بحرونو کشف د یونان په ټولنه کې د یو لړ اقتصادي فعالیتونو سبب وګرځید.

د اقتصاد په هکله د لرغونو یونانیانو مفکوره له دې کبله د اهمیت وړ ده چې، د اقتصاد اصطلاح پخپل ځانګړي مفهوم په لرغوني دوران کې او د لومړي ځل له پاره د یوناني فیلسوفانو، لکه ارسطو او افلاطون د استفادې او څېړنې وړ وګرځیده. په لرغوني یونان کښې سره له دې چې تجارتي فعالیتونو ښه رونق درلود، مګر کورنۍ د اقتصادي واحد (یا د اقتصادي فعالیتونو د مرکز) په حیث ګڼل کیده، له همدې سببه ارسطو اقتصاد «د تدبیر منزل» یا «د کور مدیریت» په توګه تعریف او په دې عقیده وچې اقتصاد په غیر د کور له مدیریت نه بل شي نه دی، په دې وخت کې د اقتصادي فعالیتونو اندازه زیاتره په کرهنه متمرکز وه، په داسې حال کې چې په ښارونو کې د شیانو تولید او د هغه منظمه مبادله په بازارونو کې، د سوداګرو د طبقې پواسطه ترسره کیده.

افلاطون او ارسطو مجلله ژوند او ثروت ټولول محکومول، او په دې عقيده وو، چې پانګه د فساد عامل دی، او هغوی سود (ربح) هم رداوه، د هغوی په نظر کرهنه مولد، او زراعتي توليدی فعاليتونه يې تأئيدول او د هغې ملاتړ يې کاوه. په منځنيو پيړيو کې هم اقتصادي څيړنو محدوده ساحه اولمن درلوده، او په همدغو کې اقتصادي بحثونه د کليسا د معيارونو په شاوخوا کې روان وو، په همدی اساس اقتصادي بحثونو زياتره د اقتصادي مسئلو اخلاقي اړخ په برکښې نيوه.

د اسلام د مقدس دين په منځ ته راتللو او اسلامي تمدن په خپريدلو، د اقتصاد په ساحه کې اغيزې پرېښودې، او اسلامي طرز تفکر د يووالي او پيوستون په اساس د ټولنې د افرادو په منځ کې د مسلمانانو ژوند ته قدرت خوځونکی ځواک ورباښه، او په ډيرو ساحو کې په موندنو او تحقيقونو بريالي شول، په رياضياتو او طبيعي علومو کې يې لوی پر مختګونه وکړل، اسلامي پوهانو د اقتصادي مسئلو په هکله او د معاملو په تنظيمولو کې، زيات کتابونه وليکل.

اسلام په منځني ختيځ، منځنۍ آسيا او افريقا کې د لويو او قوي مدنيتونو بنسټ ايښودونکی شو، او د اروپايانو د افکارو په ويښولو کې يې ډير لوړ او ځرګند رول ولوباوه. اسلامي پوهانو لکه: فارابي، ابن رشد، ابن سينا او غزالي د پخوانيو او لرغونو يونانيانو فکري اصول اروپايانو ته انتقال کړل.

د اسلام مقدس دين پيدايښت او د اسلامي فلسفې ودې د کتني وړ اغيز د منځنيو پيړيو په طرز تفکر باندې پرېښودې.

د زمانې په تيريدو سره ټولنيز او اقتصاد بدلون او تحول په اروپا کې، د تجدد دور صورت وموند او د اقتصاد له نظره د دولسمې پيړۍ څخه وروسته په ايټاليا کې، وررروسته د اروپا په مرکز او شمالي هيوادونو کې، تجاران، صرافان او پيشه وران بريالي شول، ترڅو لازمه نفوذ او اقتدار په ټولنه د ځمکه والو په ځای لاس ته راوړي. په پنځه لسمه پيړۍ کې د اروپا پانګوالې حلقې په اقتصادي او سياسي

ژوندانه کې لازم قدرت لاس ته راوړ، د ختيځ اسلامي تمدن سره آشنا شول، او د سرو زرو او سپينو زرو نويو زيرمه ايزو منابعو ته د امريکا د قارې د کشفولو له لارې څخه لاس ورسيد، چې دغو عواملو نوی افق د اررو پائيانو له پاره خلاص کړ.

د رنسانس په دوران کې د خلکو اقتصادي وضع ښه او بهتره شوه، لوی ښارونه منځ ته راغلل، او ښاري ژوند پراختيا وموندە، د بحري انکشاف او د حمل او نقل پراختيا د سفرونو امکان نورو ځايو ته ممکن وګرځاوه، او د اجتماعي او اقتصادي له نظره تولنې د پرمختګ لاره ووهله. بالاخره د متمرکزو دولتونو له ايجاده سره، د دولت د قدرت د زياتوالي په خاطر، د مالياتو ورکول د دولته څخه د مالياتو په منظور، د مقتدرو استعماري دولتونو د را مينځته کيدو له پاره لارې چارې برابرې کړې او په دې لړکې د سوداګرانو مکتب په اروپا کې منځ ته راغی.

## تجارتي مکتب (Mercantilism):

د پنځلسمی او شپاړلسمی پیړۍ تغيراتو، بدلونونو او جغرافيائي اکتشافاتو په نتيجه کې او د دې امکاناتو منځ ته راتلل چې په لويديځ کې د لمړنيو موادو منابعو ته لاس پيدا کړی. تجارتي روابط اوراکړی او ورکړی په واسطه او پيسو څخه کار اخيستل په اقتصادي روابطو کې، په امريکا کې د سرو زرود ذخائرو کشف، د تجارت حجم او اندازه په بهر کې زياته کړه، له بلې خوا څخه د دولتونو قدرت څرګندولو او د عصري اسلحی استعمال په جنګونو کې اود هغوی بریالیتوب، د مستعمراتو او استعماري سياستونو د منځ ته راتګ له پاره زمينه برابره کړه.

له دې تحولاتو سره سم اقتصادي فعاليتونه چې تر پنځه لسمې پيړۍ پورې په اروپا کې د مذهبی او اخلاقی اصولو ته تابع وو، تغير وموند او د کسب او تجارت او مادي شتمنۍ او دلوړ ارزښت لرونکی فلزاتو، لکه سره زراو، سپين زرو خواته انحراف وموند. د اروپائي تولنې د د منلو وړ نظريات د تجارتي اقتصاد، ملت

غوښتنې او ملي مسائلو ته توجه د سره زر او سپين زر زيرمو ته هڅيدنې او تمايل، يوائې د ملي پانگې د منابعو تر عنوان او بهرني سوداگرۍ ته توجه او بالاخره د اقتصادي او نظامي سياست پراختيا وه.

نوځکه تجارتي مکتب يو اقتصادي سياست او طريقه ده، چې په (۱۵) او (۱٦) پيړيو کې د نړۍ اقتصادي ځانگړو شرايطو محصول او مجموعه ده. په دې شرايطو کې اروپائي نظاميان او سوداگر د ختيځ مالونو او د نوې نړۍ د شتمنيو په پلټنه کې شول. په ظاهره کې د مينې او دوستۍ ښودنو په عنوان د نورو ملکو او هيوادو ته داخل شول او پراخې ځمکې يې تصرف کړې.

پرتگاليانو د افريقې له لارې څخه په هندو چين کې استعماري هډې جوړې کړې، هسپانويانو، د امريکې ډيره او لويه ځمکه د هسپانيې د دولت په نامه لاس ته راوړله او د هغې متصرف شول، وروسته د انگليس، هالنډ او فرانسې دولتونه هم ډگر ته ننوتل، او تجارتي او پولې استعمار ته يې پراختيا ورکړه.

په لنډه توگه د سوداگرۍ د مکتب ځانگړنې عبارت دي له:

- خپل هيواد ته زيات گټه تر لاسه کول.
- د سره زرو او سپين زرو د فلزاتو ټولونه او خپل هيواد ته انتقال.
- نورو هيوادو ته د شيانو صادرول او د زياتو وارداتو مخه نيول.
- د محلي او داخلي صنايعو څخه ملاتړ.
- د اومو او لومړنيو موادو واردات بيله محصول او گمرکي عوارضو څخه.

د سوداگرانو مفکورې او نظريې په بېلابېلو شکلونو په اروپائي هيوادونو کې ځرگندې شوې، په پرتگال او هسپانيا کې د فلزاتو سوداگرۍ وده او رونق وموند، په فرانسه کې زراعتي او صنعتي سوداگرۍ رواج وموند، هالنډ او انگلستان کوښښ وکړ، ترڅو د نړيوالې سوداگرۍ له لارې څخه قيمتي فلزات لاس ته راوړي.

د (١٨) پيړۍ په اوږدو کې د سوداګرانو د نظريو په اجرا او تطبيق کې ډير مشکلات منځ ته راغلل، چې په تدريج سره د هغوی د نظرياتو صحت له ترديد سره مخامخ کړ. د دې مکتب په کوښښن د مثبتې موازنې د ساتلو له پاره بهرني تجارت له مشکلاتو سره مخامخ شو، د صنعتي شيانو او کاليو واردولو مخه نيول هم په عمل کې بريالی سياست نه و، او له هيوادو څخه په غير قانوني توګه د سره زرو او اسعارو د خارجيدو باعث کيده. بالاخره صنعتي انقلاب د عنعنوي اقتصاد زيربنا ته په اروپا کې تغير ورکړ. په نوي اقتصادي نظام کې صنعتي کار فرمايان د سرمايه داری د دوران سوداګر پانګه والو ځای ونيو. اقتصادي طريقې او همدارنګه محدود کوونکی تجارتی مقررات د دې مکتب، خپل ځای په تدريجي توګه هغه انديشې او نظريې ته ورکړ چې د رقابت اصول او په کسب او کار د آزادی د (طبيعی قوانينو) له مخې يې بنسټ ايښودل شوی و. د بانکداری پراختيا او انکشاف په اروپا کې له يوې خوا، او د ټکنالوژۍ او اقتصادي نوښتونو چې د صنعتي انقلاب څخه نشأت کړی و، له بلې خوا، د دې باعث شو چې، سره زر او سپين زر د شتمنۍ د منابعو په عنوان خپل ځای ځمکې او زراعتي محصولاتو، کارخانو او صنعتي ماشين او آلاتو او په کلی توګه، صنعتي شيانو او مالونو ته پريږدي، او له بلې خوا هيوادونو وکولای شول د طبيعي منابعو څخه په ګټې اخيستنې، زياتی پانګې اچونې او همدارنګه د کار د قوې حاصل او د کار د مولديت لوړولو له لاری شتمن شي.

## طبيعيون يا د طبيعت پلويانو مکتب (The Fhysiocracy):

په اتلسمه (١٨) پيړۍ کې د سوداګرۍ د اقتصادي نظام د سقوط سره په اروپا کې د طبيعيونو مکتب بنسټ د فرانسې په هيواد کې کښيښودل شو. د غې مفکورې د اقتصادي عقايدو په تشکيل کې زيات اغيزه درلوده. دغه مکتب د اقتصاد مطالعه د هغه زمانې د فلسفی نهضت سره هم وتړله. د طبيعي نظم په مورد

کې يو جهت کښېښود. د طبيعي قانون د دې مکتب د عملي تفکر اساس تشکيلوي، د هغوی په نظر انساني ټولنه د له پر طبيعت باندې د حاکمو قوانينو تابع ده، او اقتصادي اعمال چې د هغې څخه نشأت کوي، هم طبيعت پورې تړلي ګڼې.

برسېره پر دې طبيعيون په دې عقيده وو، چې د طبيعي قوانينو د اجرا څخه، يو طبيعي نظام منځ ته راځي، چې نه يواځې منطقي او عقيده يې وي، بلکه د ټولنې د اصلاح د پاره هم وي، او د هغوی په وينا ټول افراد او انساني قدرتونه بايد بې له ترديده د غير قابل تغير او انعطاف نه منونکې چې، خدای (ج) وضع کړي دي او بهترين ممکن مقررات دي پيروي وکړي. هغوی د اقتصادي فعاليتونو په آزادۍ باندې عقيده درلوده، او تاکيديې کاوه چې ټولنه بايد کاملاً آزاده اوسي، ترڅو هر وګړي وکولای شي د هغې ګټې په اساس چې لري يې، خپل اهداف تعقيب کړي. د دې اصل پرېنسټ د زياتو ګټو حاصلول او د ډېرو ښېګڼو تعقيبول په ډېر لږ لګښت سره به د هر انسان د اقتصادي روش اساس وي.

د غه مکتب د تجارتي مکتب په مقابل کې يو عکس العمل دی، چې په هغه دوره کې د فرانسې ګروندګر د تجارتي مکتب د سياستونو په اثر له بحران سره مخامخ وو، د فرانسې کروندګر د درنو ماليات په ورکولو مجبور او مکلف وو، په داسې حال کې چې نوري طبقې او قشرونه (نجيبان او روحانيون) ماليې ورکولو څخه معاف وو، په نتيجه کې د اقتصادي اصلاحاتو په لور لاره خلاصه شو، او طبيعيونو د نويو او تازه سياستونو اجراء، د اقتصادي اوضاع د ښه کيدو په خاطر مطرح کړه.

هغوی په دې عقيده وو، چې کرهڼه د توليد يواځنۍ منبع د، صنعت او تجارت يوازې شيانو ته تغير شکل ورکوي او بس، نو ځکه مځکه د عايد او توليد يواځنۍ منبع ده. مځکه يې د ثروت منشاء بللې ده، طبيعيونو د صنايعو فعاليتونه

د مالونو د تجارت او تبادلې څخه مهم ګڼلي دي. ځکه په صنعت کښې افراد او اشخاص د کار په اثر پر اومه موادو باندې د خپل د کار د ارزښت معادل عاید لاس ته راوړي، او په دې صورت کې د مشروع عاید خاوند وي، طبیعیون له هرې برخې څخه دمخه کرهڼه تشویق او حمایت کوي.

## کلاسیک مکتب:

د اتلسمې پیړۍ په وروستیو او د نولسمې پیړۍ په سرکې اقتصادي مکتب منځ ته راغی چې د کلاسیک مکتب په نامه مشهور دی. ددې مکتب طرفداران د سوداګرۍ د مکتب عقیدې او مفکورې تر استفادې لاندې ونیولې او د اقتصادي قوانینو د کشف او د معاصر اقتصاد علم په بنسټ ایښودلو بریالی شول.

د اقتصادي مسائلو او پدیدو د تحلیل او تجزیې څخه دغې نتیجې ته ورسیدل چې دولت باید په اقتصادي چارو کښې له لاس وهلو څخه ډډه وکړي او ټول اقتصادي فعالیتونه خصوصي برخې ته پریږدي. آدم سمیت (A. Smith ۱۷۲۱ - ۱۷۹۰) په دې عقیده و، چې د کار قوه د هرې ټولنې د اصلي ثروت منبع تشکیلوي. هغه عقیده درلوده چې تولید د تخصیص او د کارویش په اساس زیاتیږي او د ټولنې اقتصاد د خارجي قوې د دخالت څخه پرته خپل مؤثر فعالیت ته ادامه ورکوي. آدم سمیت د کسب او کار او د عرضه او تقاضا د موادو په بازار کښې د بین المللي تجارت د آزادۍ طرفدار و.

د سمیت د اقتصادي نظریې اساس د ژان ژاک روسو «د فرد اصالت» پرنسنټ ولاړ دی. د کلاسیک مکتب وروسته په دوو مختلفو جهتو تکامل وکړ: یو د بدبینانو (انګلیسي) مکتب او بل د خوشبینانو (فرانسوي) مکتب.

رابرت مالتوس (R. Maltoss) او دیوید ریکاردو (D. Ricardo) د بدبینانو د مکتب نمایندګان دي.

مالتوس په دې عقیده و، چې که د نړۍ نفوس د هندسي تصاعد پر اساس

(۲-٤-۸-۱٦-۳۲-٦٤) او غذائي مواد د حسابي تصاعد په اساس (۲-٤-٦-۸-۱۰-۱۲-١٤) زياتيږي، کله کله به د نفوسو سعودي تګ لوری هغه اندازې ته ورسيږی چې، انسان وکړای شي ځان د غذائي موادو له نظره تأمين کړي، هغه دزيږيدنو د مخنيوی پيشنهاد کوي. د مالتوس نوی پيروان دننني نسل تولی بدمرغۍ د هغوی د خپلو تصاميمو څخه ګڼي، حتی په ځينو مواردو کې جنګونه او قحطۍ دنفوسی ودې دمخ نيوی د پاره ښه او لازم بولي.

د ريکاردو بدبيني د هغه د ځمکې «رانت» په قانون کې نغښتې دی، دده په نظر د کښت وړ ځمکې مخصوصاً غوره ځمکې مساحت په نړۍ کښې، محدود دی، او د بشر د نفوسو د زياتوالي په صورت کې د ښو غوره ځمکو په مساحت کې هم کموالی راځي، او په نتيجه کې غوره ځمکې د محصولاتو قيمت هم زياتيږي، او دغه موضوع د يو اضافي ارزښت يا د ځمکې د «رانت» د تشکيل سبب ګرځي، چې ځمکوال له هغه څخه ګټه اخلي. د نفوسو په زياتيدو سره د کارګرانو مزد او اجوره کميږی، او د محصولاتو بيه زياتيږي، او په نتيجه کې د ځمکې «رانت» زياتيږي. د اجورې په کموالي او د قيمتونو په لوړيدو تقاضا محدوده کيږي، ګټه او پانګه اچول محدود کيږي، او د نفوسو زياتوالی اقتصادي نظام قهقراته کشوي.

په کلاسيک اقتصاد کې مهمه او اساسي مسئله، په اوږده موده کې اقتصادي وده، ده. کلاسيک اقتصاد پوهان اصولاً دلوی اقتصاد عالمان او پوهان وو، او په کوچني اقتصاد کې د منابعو تخصيص ته يې توجه او پاملرنه نه درلوده، له دی کبله د اقتصاد کل يا لوی اقتصاد له روشه څخه په استفادې سره د اقتصادي ودې مسئله ترڅيړنې لاندی ونيوله.

د کلاسيک مکتب اقتصاد پوهانو په نظر نفوس د اقتصادي محرک دی، مګر د مالتوس اوريکاردو په نظر نفوس د اقتصادي انکشاف يولوی خنډ دی، او سرمايه داری نظام به په اوږده موده کی د يو سلسله مسئلو سره، لکه د نفوسو فشار

د اقتصادي رشد د اندازې کموالی، بحران او بېکاري سره مخامخ شي. ژان باتست سی J. B. Say ۱۷٦۷-۱۸۳۲ ار فرد رېک باستيا F. Basteia د مالتوس او ريکاردو پر خلاف د خوشبينانو د مکتب نمايندګان دي.

## اشتراکي مکتب:

د نولسمې پېړۍ د پيل څخه د کلاسيک پياوړي مکتب د تعادل د نظريې باوجود، د اقتصادي عدم تعادل او بحرانونه په ۱۸۱٤ - ۱۸۵۲ کالو کې منځ ته راغلل. اجتماعي اړو دوړ زيات شو او په کارخانو کې د کار شرايط له طاقت او توانه څخه ووتل، د کار ساعتونه زيات وو، او تقريباً د دولس ساعتو څخه (۱٦) ساعتونو ته په ورځ کې پورته شول، د قيمتو زياتوالی، د خريد قدرت کموالی، وزګاري او نور اقتصادي او اجتماعي معضلې د شديدې نا آرامی او اجتماعي ټکرونو او بې نظمو سبب وګرځيد، يو شمير د آزاد بازار د نظام د تغير غوښتونکي شول. دوی اقتصادي سيستم او خپل نظريات مطرح کړل، چې هغه د اشتراکي مکتب په نوم ياديدل. د هغوی د نظريې اساس پر اقتصاد باندې دولتي مالکيت و، په دې نظام کې د توليد عوامل (ځمکه، د کار قوه او پانګه يا سرمايه) د دولت په مالکيت کې قرار لري. ددې نظام پلويان په خصوصي مالکيت پر توليدی وسايلو، مخصوصاً ځمکه او سرمايه (پانګه) باندې مخالف وو، ددې مکتب د نظريې په اساس کاګران له هغې څخه زيات چې ورته ورکول کيږي، سرمايه دارانو ته ارزښت ايجادوي، او د کارګرانو د کار په نتيجه کې «اضافي ارزښت» منځ ته راځي، چې عمدتاً د کار فرمايانو له خوا پرې خېټه اچول کيږي. دغه مکتب د آزاد بازار د له منځه تللو غوښتونکي و. د اشتراکي مکتب د اقتصادي نظرياتو بنسټ اينبودونکي په کلاسيک اقتصاد پورې، مخصوصاً د دويد ريکاردو په تصميمونو باندې استقرار وو، اکثراً يې د هغه مفکورې اقتباس کړې دي.

## د نهاییون مکتب (نوی کلاسیک):

دا اقتصادي مکتب د نویو روشونو پر اساس د لږو تغیراتو په منلو سره د کلاسیک مکتب د اصولو او قوانینو څخه طرفداري او پلوي کوي، په دې اساس یې د نوي کلاسیک مکتب په نوم شهرت موندلی دی.

## تاریخي مکتب:

د نولسمې پیړۍ په سر کې د المان سیاسي او اقتصادي حال او احوال ډیر اغیزمن شوی و، او په نهه د یرش بیلا بیلو ایالتونو تقسیم شوی و، هر یو ایالت د حکومتی له نظره د نیمه مستقل سیستم لرونکی، او د قتصادي له نظره د مستقل سیاست لرونکی و، او پخپل منځ کې یې یو شمیر گرکمرکي خنډونه تأمین کړي وو. له بلی خوا د المان د دولت په تلاش او کوښښ، د هغوی احساسات د ناپلیون پر ضد تحریک شول او د المان ډیرو عالمانو د تاریخی مکتب اساس کښیښود. ددې هیلو د تحقیق په لوري حرکت په ۱۸۳۳ کال کې په المان کې د گمرکي او تجارتي اتحادیې په ایجادولو پیل شو. له دې څخه وروسته المان صنعتي کیدو ته آماده شو، د کلاسیک مکتب څخه په انتقاد، چې نړۍ په یوه کلي او عمومی نظریه تحلیلوي، په داسې حال کې چې تاریخی سیستم باید خپل خاص اقتصادي نظام تر نظر لاندې ونیسي.

د تاریخي مکتب اقتصاد پوهان په دې عقیده وو، چې اساسی هدف ته د رسیدو له پاره چې هماغه ملي اقتصاد دی، لومړی باید د هر هیواد فرهنگ او تاریخ د سیاست اساس وټاکل شي، او له دې لارې څخه کولای شو د ټولنې د اقتصادي آرامۍ او سوکالۍ د سطحې په لوړولو کې اغیزمن گامونه پورته کړو.

**الف- پخوانی تاریخي مکتب:**

دا مکتب د یو لړ نظریو حاصل دی، چې د اقتصادي فعالیتونو بدلون په جریان کې یې ځینی نظریې مطرح کړلې، چې هغه زیاتې په تاریخي توضیح او بیان متکی دي. فریدریک لیست د تاریخي پرمختگ پړاوونه په پنځو مرحلو تقسیم کړي دي:

لومړی پړاو او مرحله چې په هغه کې انسانانو په بدوي شکل ژوند کاوه، او بشري ذهني او عقلي وده او انکشاف زيات محدود و.

دوهمه مرحله، د حيواناتو د ښکار مرحله ده.

دريمه مرحله، د ټولنو په مينځ کی د کرنې پراختيا مرحله ده.

څلورمه مرحله، هغه مرحله ده، چې په يوخت کرهنه او صنعت دواړه په ابتدائي او عنعنوي شکل موجود، او کرنې زيات انکشاف وکړ.

پنځمه مرحله، هغه مرحله ده چې په هغه کې همزمان د زراعت او صنعت سره سوداګري (تجارت) هم جريان لري او ملي اقتصادي وده او انکشاف په درې مرحلو تقسيموي:

**لومړی، طبيعي اقتصاد:** چې ټولنه زياتره په کورنی (فاميلی) اقتصاد متکي وي او د انسانانو اقتصادي فعالبت د هغوی د اساسي او لومړنی اړتياوو رفع کولو ته متوجه وي، په دې اقتصاد کې د مالونو تبادلې وجود نه درلود.

**دوهم پولي اقتصاد:** څرنګه چې د جنس په جنس مبادله په اقتصاد کې د مشکلاتو د پيدا کيدو باعث شوه، نو ځکه پيسو په تدريج سره د تبادلې وظيفه په غاړه واخيستله، او د بازار را کړې او ورکړې پرمختيا ومونده.

**دريم کريډتي اقتصاد:** د اقتصاد بله مرحله د کريدتي مرحلی څخه عبارت دی، يعنی په دې دوران کې، اعتبارات او د قرضې ورکول او کريدتونه پراختيا مومي، او اقتصاد په دې مرحله کې په کريډتونو او اعتباراتو متکي وي، او برسيره پرپورتني تقسيم بندی، کارل بوسير د اقتصادي تکامل مراحل په درې لاندنينو مرحلو ويشلي دي:

**کسبګري اقتصاد:** په دې اقتصاد کې، توليد د لګښت په منظور وي، او په هغه کې د کار تقسيمات ډير ساده وي، او هريو د خپلو اړتيا وو د تأمين له پاره د ځينو شيانو په توليد بوخت دي.

**ښاري اقتصاد:** ښاري اقتصاد د تجارت او تبادلې زېږند ده، او د روابطو په انکشاف او تبادلوي روابطو په اثر په تدريجي توګه د تبادلې عمده مرکزونه، يعنی ښارونه منځ ته راځي، په ښارونو کې اقتصادي فعاليتونه په زياته اندازه انکشاف کوي، او ښارونه حقيقتاً بازارونه دي.

**ملي اقتصاد:** ملي اقتصاد په ستره پيمانه د ښارونو د پراختيا او انکشاف څخه وروسته منځ ته راځي، ځکه تبادلوي او تجارتي رابطې د ښارونو په منځ کې، انتقالاتو او مواصلاتو ته پراختيا ورکوي او مراودې د ښارونو په منځ کې د انتقالاتو په واسطه ملي اقتصاد ايجادوي او اقتصادي فعاليتونه پراخه کوي.

**ب- نوې تاريخي مکتب:**

په دې برخه کې يو شمير پوهانو د نظر او عقيدې څرګندونه کړې، مګر دلته د هغه د اهميت سره سم د رستو W. Rostow نظر په لنډه توګه تر مطالعې لاندې نيسو. روستو اقتصادي انکشاف په پنځه مرحلې تقسيم کړي دي:

**۱- د عنعنوي اقتصاد مرحله:** دغه اقتصاد د کورنيو د اړتيا وو د ليرې کولو په منظور توليد کوي. په اقتصاد کې د ۷۵ فيصده څخه زيات نفوس په کرهنه کې مشغول دی. په ځينو تولنو کې توليد د مصرف څخه زيات وي، مګر د توليد مازاد (اضافه توليد) د غير توليدي د مصارفو د پاره لکه، د جشنونو په تجليلولو او په نورو عنعنوی مراسمو کې په مصرف رسيږي. د دې مرحلې اقتصادي مشخصه داده، چې زراعتي توليد قسماً زياتيږي، او د تولنې د ژوندانه سطحه هم لوړيږي او توليدي مازاد منځه ته راځي.

**۲- له خيزوهلو څخه مخکښې مرحله:** په دی مرحله کې داسې شرايط منځ ته راځي چې، د اقتصادي انکشاف له پاره په ټولو ساحو کې مساعده فضا برابره وي، او تدريجاً دغه مرحله په خيز کې شامليږي، يعنې په دې مرحله کې د چاپيريال شرايط د ټولنې اقتصادي فعاليتو له پاره، د ابتدائي زراعتي مرحلې څخه، صنعتي مرحلې ته مساعد وي، او په اقتصاد کې وده او انکشاف منځ ته راځي.

**۳- د خيزاو توپ مرحله:** په دې مرحله کې د اقتصادي انکشاف له پاره شرايط مساعد دي.

**څلورم، د اقتصادي مرحلې پوخوالی او بلوغ:**

په دې مرحله کې سرانه عايد (مجموعي توليدات په پولي واحد تقسيم پر نفوس باندې) د خيزوهلو د مرحلې دوه برابره زياتيږي. د ټولنې ټولې ساحې، لکه: توليد او مصرف، پانګه اچونه، خارجي تجارت، د عايد ويش او داسې نور په چټکتيا سره بدلون مومي.

**پنځم د زيات لګښت مرحله:** په دې مرحله کې له اقتصادي ودې څخه زياته استفاده کيږي. د ټولنې سطحه پورته ځي او توليدی او لګښتي شيان د افرادو لاس ته زيات ورځي.

## څلورم څپرکی:

# اقتصادي سیستمونه او نظامونه

هر اقتصادي نظام او سیستم د یو لړ خصوصیاتو او معیارونو لرونکی وی، چې د هغه تولیدي او معیشتی جوړښت له هغې څخه نمایندگي کوي، او د هغه پر بنسټ یې تولنیز مرکزونه او سازمانونه ولاړ وي.

هر ټولنه چې په هره اقتصادي او اجتماعي مرحله کې واقع وي او د خپل اقتصادي او فرهنگی ودې په هر درجه کې چې وی، د تولید، ویش او مصرف، هغه پر مختللي وي او که وروسته پاتی وي، ورسره مخامخ کیږي، او دا پوښتنې، چې څه شی تولید کړو؟، په کومه وسیله یې تولید کړو؟ او د چا له پاره یې تولید کړو؟، یعنی د تولید مقدار او اندازه، وسیله د تولیداو ویش شکل باید مشخص کړو.

انسانانو د مځکې په کره باندې د خپل ژوند د لومړي وخته څخه د خپلو جسمي اړتیا وو په لیرې کولو کښې هلې ځلې کولې، کله په ابتدائي وسایلو د خپل ضرورت په اندازه د کبانو په ښکار بوخت وو، او نن د ډیر پرمخ تللي او مجهزو ماشینو پواسطه د خپل اقتصادي مسائلو او حیاتي اړتیاوو د حل د پاره کار او فعالیت کوي، مگر په تیر وخت او اوس او په ټولو شرایطو کې د خپل ضروریاتو او د خپلو هیلو او غوښتنو ته د رسیدو په خاطر کوښښ کوي.

څرنگه چې منابع محدودې دي او د انسان هیلې او غوښتنې نا محدودې دی، نو په ټولو حالاتو کې د خپل نا محدودو ضروریاتو د تأمینولو له پاره مجبوراً له دریو پورتنیو مسئلو سره مخامخ شي، او د هغه د حل له پاره هڅه او هاند وکړي، یعنې باید دا معلومه کړي، چې د مختلفو شیانو او خدماتو څخه چې هغې ته اړتیا لري، کوم قسمونه د تولید له پاره انتخاب کړي، او په څه مقدار د هغی څخه تولید

کېږي، او په وروستۍ مرحله کې د شيانو او خدماتو د توليد د پاره کومې لارې انتخاب کېږي او په نتيجه کې توليد شوي شيان او خدمات په ټولنه کې د چا له پاره اختصاص ورکېږي او ښا تقسيم يې کېږي.

هر ټولنه د پورتنيو درې ګونو مسئلو د حل له پاره خاصې طريقې انتخابوي چې، په هغه محدوده کې اقتصادي فعاليتونه سرته رسيږي.

د پورتنيو درې اصولو د اجراء او تطبيق د شکل او لارو چارو له مخې اقتصادي روشونه او سيستمونه مشخص کيږي، چې په لاندې توګه اوسني اقتصادي سيستمونه تر مطالعې او څېړنې لاندې نيسو:

## د آزاد بازار نظام (سرمايه داري سيستم):

د آزاد بازار نظام د اقتصاد له نظره، د توليد هغې طريقې او اقتصادي نظام ته ويل کيږي، چې په هغه کې خصوصي پانګې په فعاليتونو کې اساسي نقش لري.

له حقوقي نظره د آزاد بازار په نظام کې «خصوصي مالکيت ته د احترام اصل» معتبر دی، د هغه پر اساس د توليدي وسايلو خاوندان (سرمايه داران)، د ځمکې خاوندان او همدارنګه هغه خلک چې د کار قوه په اختيار کې لري، د خپل ثروت او توليدی امکاناتو خاوند دی.

مالکيت او قرار دادونو ته د احترام اصل په اساس، سرمايه داران کولای شي، خپلې پيسې او سرمايې پخپله خوښه، د ګټې په مقابل کې پور ورکېږي او يا پانګه آچونې ته اقدام وکېږي، او يا د کار فرما په توګه توليدي فعاليت کې داخل شي. د ځمکې خاوندان خپل ملک باندې تسلط لرى، او حق لري چې ځمکه خرڅه کېږي او يا يې بل چاته په اجاره ورکېږي او د هغه د ګټې نه برخمن شي، په دې وخت کې کارګران کولای شی خپل کار د اجورې د لاس ته راوړلو په بدل کې، هغه مؤسسات او خلکو ته چې ورته اړتيا لري، عرضه کېږي.

برسيره پر دې کارفرمايان په دې نظام کې اساسي او اغيزمن نقش لري، د

هغه انسجام او ابتکار څخه چې د تولید د ترکیب د عواملو له پاره یې په کار وړي، ګټې د سرمایې، مځکې او د کار قوې څخه لاس ته راوړي. او لاس ته راوړل شوې حاصل د دې فعالیتونو څخه په دې سیستم کې څارل او ساتل کیږي، او حقوقي اصول او حاکم مقررات د اصل مالکیت څخه دفاع کوي.

د اقتصادي فعالیتونو انګیزه د آزاد بازار په نظام کې ګټه یا سود لاس ته راوړل دي. تولیدکوونکي زیار باسي هغه شیان تولید کړي، چې زیاتره ګټه د هغې څخه لاسته راشي، عرضه کوونکي کوښښ کوي، د ډېر تولید او خرڅلاو په نتیجه کې، ډیره ګټه لاس ته راوړي، او په دې حصه کې تولید کوونکي یو د بل سره رقابت کوي، او هر یو کوښښ کوي د خرڅلاو د قیمت په نژدې کولو د تمام شوي بیې سره، زیاتره تقاضا کوونکي ځان ته جلب کړي او په دې شکل په خپلو رقیبانو باندې بریالی شي او زیاته ګټه لاس ته راوړي. په دې برخه کې هر یو د تولید کوونکي څخه د قیمتونو په ټیټ راوستلو او یا د شیانو په ښه والي او د تبلیغاتو له لارې کوښښ کوي چې خپل د اړتیاوړ ښه شیان او خدمات ځانته اختصاص ورکړي. د دې سیستم له پاره د عرضه او تقاضا او بازار موجودیت او کامل رقابت لازمي دی، دغه د کارفرما په نظم کې د تولید او لګښت په منځ کې واسطه ده، او د تولید د عواملو ترکیب او د هغه هماهنګ کول، ځمکه وال، د کار خاوندان، او سرمایه داران د خپلې خوښې عاید او درامد ته بریالی کوي، په دې توګه له یوې خوا څخه په ټولنه کې عاید تقسیم او توزیع سرته رسوي، او له بلې خوا تولید شوې محصولات بازار ته عرضه کوي او له دې مدرکه څخه سوداګر او بازاریانو ته ګټه په لاس ورځي.

## د بازار د نظام د بدلون بهیر:

ډیر اقتصاد پوهان شپاړسمه پیړۍ د تجارتي سرمایه دارۍ عصر او زمان بولي، اما په تیرو تاریخي زمانو کې د پولي اقتصاد پانګه والۍ روش د کلمې په خاصه معنی ښه ښکاره وجود درلود، او په بابل، آتن او دیونان په ښارونو کې

شیانو تجارت او تبادلې په معاملو کې عمده رول درلود. مګر په شپاړلسمه پېړۍ کې پانګه والي نظام په پرمخ تللې توګه منځ ته راغي. ځينې عوامل د سرمايه دارۍ په منځ ته راتلو او د هغه په وده کې اساسي نقش درلود، چې په لنډه توګه توضيح او تشريح کيږي:

### - د سوداګرۍ وده (انکشاف):

صليبي جنګونه د ختيځ او لويديز ترمنځ د تجارت پرمختګ سبب وګرځيد، او دوه تمدنه يې يو د بل سره آشنا کړل، د اروپا او آسيا تجارتي ارتباط ته يې رونق ورکړ، او پولي او تجارت معاملې په اروپا کې پراختيا ومونده.

### - د زراعتي توليداتو وده او انساني عامل:

لاس ته راوړل شوي ارقام او اعداد ښيي، چې، له يوولسمې پېړۍ څخه وروسته په اروپا کې نفوس مخ په زياتيدو شو. د نفوس زياتوالی زيات خواړه (غذا) او ښه وسايلو اړتيا درلوده، چې د زراعتي توليد د طرز او طريقې د تکامل سبب شو، چې ښو وسيلو او توليدي افزارو او سرمايې ته يې ضرورت درلود، نو په دې توګه د سرمايه دارۍ نظام دودې او انکشاف سبب شو.

### - د صنايعو پرمختګ:

د تجارتي او زراعتي فعاليتو د انکشاف او ارتباطي وسايلو د ښه کيدو سره جوخت، د اروپا صنايعو وده او پرمختګ وکړ. توليدي روشونه په کرهنه او صنعت کښې له ختيځ څخه اروپا ته انتقال شول، او د نساجۍ صنعت په اروپا کې پراختيا ومونده.

### - جغرافيائي ستر اکتشافات:

لوی جغرافيائي اکتشافات په پنځه لسمه او شپاړلسمه پېړۍ کې په ختيځ کې د پرتګاليانو او په لويديځ کې د هسپانويانو له خوا، په نړيواله سطحه د تجارت

دودي باعث وګرځيد. برسيره پردي د سره زر او سپين زر ليږدونه او انتقال هم له مستعمره هيوادو څخه د اقتصادي فعاليتونو د پراختيا سبب وګرځيد، او سرمايه داري د اروپا مسلط نظام شو.

## - د رنسانس د عصر فکري بدلون اوذهنيت تغير:

په پنځه لسمې او شپاړلسمې پيړۍ کې د اقتصادي بدلونونو په مجموع کې اروپا له خوبه څخه وينبه کړه، او نوي د فکري، فلسفي او مذهبي غورځنګ منځ ته راغی چې په تاريخ کې د (رنسانس) په عصر او زمانه مشهوره دي، د ديني او فلسفي تغيراتو له جملې څخه، يو داو چې په دې دوره کې د تيرو دورو پر خلاف، د ثروت ټولول او زراټولول نامطلوب فعاليت نه ګڼل کيده، او سرمايه داري د دين له نقطې نظره مشروع او جائز ګڼل کيده.

په پيړيو کې د نړۍ د اقتصادي او اجتماعي شرايطو مجموعه، د زراعت، صنعت او تجارت، د پخوا څخه زيات د سرمايداری په قالب کې وده او انکشاف وکړ، او په اروپا کې د اقتصادي انقلاب سبب وګرځيد. په اتلسمه او نولسمه پيړۍ کې سرمايداري نظام خپل اوج ته ورسيد.

## په اوسنۍ زمانه کې د بازار د نظام تغير او تحول:

تجارتي سرمايه داري د سوداګري د مکتب په مفکوره تر اته لسمې پيړۍ پورې ادامه درلود، د تناسب د نه لرلو په اثر د زمانې د نوي اقتصاد جوړښت سره او د صنعتي انقلاب د واقع کيدو سره، د اقتصاد د عمل آزادي مفکوره د کلاسيک مکتب پر اساس پياوړی کړه.

د نوموړی نظام بنسټ په فردي ګټه پلټنه او آزادي باندې ولاړ و. صنعتي، مالي او تجارتي مؤسسو د خصوصي سرمايدارانو په وسيله د قانوني محدوديت څخه پرته کار او فعاليت کاوه، او رقابت د اقتصادي او توليد د اړيکو يوائځنی معيار او ملاک ګڼل کيده.

تولیدي او تجارتي سازمانونه له کوچنیو سرمایه دارانو څخه تشکیل شوي وو او یو د بله سره یې رقابت کاوه او قیمت به په بازار کې د عرضې او تقاضا د قانون په اساس تاکل کیده. دولت په اقتصادي چارو کې د لاس وهنی څخه ډډه کوله. مګر د صنعتي انقلاب او د صنعت په تکامل سره یواځې سرمایه داری نظام په نوي بهیر او مسیر کې په حرکت شروع وکړه، چې په لاندې توګه بررسي کیږي:

۱- د اقتصادي بشپړې آزادۍ ادامه او د دولت مداخله نه کول ددې سبب وګرځید چې رقابت په ډیره پراخه سطحه وده او انکشاف وکړي، د تولیدي مرستو په منځ کې سخت رقابت پخپل وار د بیو د ټیټوالي سبب وګرځید. په نتیجه کې دواړه تولید کوونکو له جملې څخه یو زیات تعداد چې د مبارزې قدرت یې د لوی تولید کوونکی سره نه درلود، له میدان څخه خارج شول.

یو شمیر تولیدونکو چې خپل فعالیت ته یې ادامه ورکوله، د تولیدي شیانو د قیمتو د ساتنې او تثبیت او د هغه تحمیل پر مصرف کوونکی او همدارنګه د تولیدي مصارفو کمول یو او بل ته نږدې شول، او د لویو او متمرکزو اقتصادي واحدونو د کارتل او ترست په نومونو تشکیلولو ته اقدام وکړ.

۲- د صنعت په تکامل او پراختیا او ضرورت زیاتو او لویو سرمایو ته د نوي تولید د شرایطو سره د مقابلې له پاره کوچنیو سرمایه دارانو امکانات محدود شول، او په دې شکل واړه او انفرادي سرمایه داران له پخوا څخه زیات دلویو اقتصادي مؤسسو له خوا جذب شول. دغه تغیرات په تولیدي روابطو کې، په تدریجی توګه د انفرادي سرمایه داری د زوال او یو دسته جمعی سرمایه داری د دوری د پیل کیدو سبب شو.

۳- له بلې خوا د لویو صنعتي واحدونو تشکیل په لوی تولیدی قدرت او د ډیرو کارګرو په تمرکز، یوه اندازه اقتصادي مشکلات او پروبلمونه منځ ته راوړل، د کارګرانو فقر، وزګارتیا، اغتشاشات او د ټولو ګټوته سرمایه دارانو او کار

فرمايانو، توجه كول ددې سبب شول چې، د اقتصادي كاملې آزادي نظريې او انفرادي سرمايه داری په باره كې عميق ترديد منځ ته راشي، او د دولت مداخله او تمايل د عدالت په تامينولو كې پياوړی شي.

د غه تمايلات او گرايشونه د اقتصادي نويو سيستمونو، لكه مختلط اقتصاد، سرمايه داری او هدايت شوی سيستم، ارشادي اقتصاد او نورو، د پيدا كيدو سبب شول، څرنگه چې نن د نړۍ په هيڅ يو هيواد كې، كامل سرمايه داري او انفرادي سيستم وجود نلري، اما په ټولو هيوادونو كې چې د آزاد بازار سيستم حاكميت لري، خصوصي مالكيت په رسميت پيژندل شوی دی.

خصوصي مالكيت په دې هيوادونو كې د ټولنې د اصلي ضوابطو په عنوان منل شوی دی، او كه نه خصوصي مالكيت به په پخپل محدوده معنا او مفهوم په ټولو ټولنو كې وجود ولري.

د سرمايه داري نظام بل حقوقي اساس د پوهې او وراثت حق په رسميت پيژندل دی، د غه حق لكه مالكيت پخپل وار، د مالياتي قوانينو او عادي قوانينو له طريقه محدودې شوي دي، په حاضر شرايطو كې د آزاد بازار نظام بل بنسټ او اساس، د كسب او كار آزادي ده. مگر دا حق هم لكه مالكيت په ځينو سرمايه داري هيوادونو كې عملاً تريوې اندازې پورې محدود شوی دی، او د تخصص او الزام په مختلفو څانگو كې او د آفرادو او اشخاصو د ښوونيزو امكاناتو محدود والی، د خپل كار په انتخاب كې په بشپړه توگه آزاد نه دی، او په حقيقت كې اړ دي چې، د خپل كار او فعاليت وضع د ټولنې د امكاناتو او احتياجاتو سره تطبيق كړي.

## د مركزی پلان اقتصادي سيستم (ټولنيزه تگ لارد)

د مركزي پلان اقتصادي سيستم تگ لاره، د اتلسمې پيړۍ په آخر او د شلمې پيړۍ په سر كې د يو سيستم په عنوان مطرح شوه، او د غه سيستم لومړی د مقابلې له پاره د آزاد بازار سيستم سره او د ټولنيز (اجتماعی) اقتصاد نظام د

فردي اقتصاد سیستم پرځای عنوان شو. مګر د زمانې په اوږدو کې د مختلفو اقتصادي او اجتماعي عواملو په نسبت د غه نظام په تدریج سره په مختلفو شاخو وویشل شو، او په متفاوتو شاخو او مشخصاتو مطرح شو، چې ځینې د دې تګ لارې او روشونه په نرمۍ او عتدال خپلې لارې ته ادامه ورکړه، چې کولای شو سوسیال دموکراتان د دې طرز تفکر یوه غوره نمونه وبولو، چې په تدریجي پرمختګ او پارلماني اصول، د فردي آزادیو په ساتلو او ملي عنعنو ته احترام، او همدارنګه د زماني او مکاني شرایطو تطبیقول او ملي کړنو ته پاملرنه لري.

برعکس د دې اقتصادي سیاست تند روانه تګ لارې تعقیبوونکی معتقد دی چې اشتراکي او دولتي مالکیت باید ټول صنعتي او زراعتي تولیدي وسایل، توزیع، سوداګري، حمل او نقل او عمومي خدمات په برکې ونیسي او د دولت دخالت په ټولو اقتصادي برخو کې، حتی په خرده فروشي کې تأکید کاوه. بازار او د هغه عملکرد د دې نظام له نظره مردود، او معتقد دی، چې تبادله او سوداګري باید کاملاً د دولت تر نظارت لاندې صورت ومومي.

د ټولنیزې تګ لارې طرفداران او پلویان (اجتماعیون) په عمومي توګه د مختلفو خدمتونو، لکه روغتیا، ښوونه او روزنه او استوګنځی دولتي کول غواړي، او د ټولنې اقتصاد د پلانګذارۍ له لارې تر کنترول لاندې ونیول شي، او ټول اقتصادي فعالیتونه په لویو او کوچنیو تولیدي واحدونو کې د دولتي پلانګذارۍ د تشکیلاتو په وسیلو رهنمائي کیږي.

اقتصادي نظامونه عمدتاً په دوو مختلفو تګ لارو او روشونو نه دي ویشل شوي، بلکه مختلف اقتصادي سیستمونه په اوسینو شرایطو کې د دې دوو سیستمو په حد فاصل کې واقع دي.

په پخوانۍ شوروي کې او تر یو حده پورې په چین کې د ټولنې ټول اقتصادي فعالیتونه د کوچني اقتصاد څخه تر لوی اقتصاده پورې، د دولت تر ادارې لاندې

واقع وو، يعنې د توليد اندازه، د ويش شكل او طريقه، همدارنګه د صنعتي، زراعتي، ارتباطاتو، خدماتو او نورو واحدونو او مؤسسو انكشافي پلانونه د هيواد په بيلابيلو برخو كې د اقتصادي مركزي سازمان له خوا، رهبري او تنظيم كيدل. مګر د غه سياستونو تل بريااليتوب نه درلود، او په عملي مراحلو كې كله نا كله زيات تغيرات او تحولات په دې پلانونو او برنامو كې وارد كيدل.

## د متمركز اقتصاد ځانګړتياوې:

د متمركز اقتصاد له اساسي مشخصاتو څخه د ټولنې د اقتصادي فعاليتونو پلانګذاري او پروګرام جوړونه ده، په دې تګ لاره كې د مختلفو اقتصادي برخو او واحدونو د توليد اندازه، همدارنګه د ويش او لګښت شكل او طريقه د يو پخواني تاكلي پلان پر اساس صورت نيسي.

بايد په پام كې ولرو چې د ملي اقتصاد پلانګذارۍ د يو متمركز اقتصاد دپاره يواځې ځان كافي ندى. ځكه چې په ډيرو هيوادونو كې د پلانګذارۍ سياست تعقيبيږي. مګر د غه هيواد ديو متمركز اقتصاد تابع نه وى. په دې سيستم كې مركزي سازمان (د پلان وزارت، د پلانګذارى كميته او يا د پلانګذارى كميسيون) اقتصادي تګ لارى تولېدى واحدونو او مؤسسوته دستور او هدايت وركوي او د هغه اجراء او تطبيق په شكل او طريقه باندې څارنه لري. كولاى شو د متمركز اقتصاد عمده او مهم خصوصيات په لاندې ډول جمع بندي او بيان كړو:

۱- د عرضې او توليد د اندازې مربوط اهداف د اقتصاد د مختلفو برخو او د مختلفو شبانو تركيبات د پلانګذارۍ له خوا صورت نيسي.

۲- د ځينو شبانو جيره بندي، مخصوصاً ډير مهم محصولات د پلانګذارى په واسطه صورت نيسي.

۳- د قيمتونو او مزدورۍ سطحې ټاكل د پلانګذارۍ په واسطه تحقق مومي.

٤- د کار د قوې استخدام او د کار بازار د برنامې او پلانګذارۍ پواسطه مشخص کیږي.

په دې سیستم کې د عوایدو توزیع د حکومتي دستګاه تر نظارت لاندې صورت نیسي. او ویل کیږي چې د اجتماعي نظارت لاندې او یا لږ تر لږه د خلکو او اجتماع انتظار ته نژدې باید دا کار صورت ونیسي. مګر باید وویل شي چې په عین حال کې د متمرکز پلانګذارۍ سیستم ډیرې خلاوې او نیمګړتیاوې هم لري چې دلته په لنډه توګه ځیړل کیږي:

**لمړی:** پلانګذاران نشي کولی چې به صحیحه توګه د ټولو شیانو قیمتونه په بازار ونو کې همزمان محاسبه کړي، په ځینو حالاتو کې د ځینو محصولاتو له پاره، قیمتونه د پلانګذارانو له خوا اعلانیږي چې ډیر نازل وي. خرڅلاو په مرکز کې د اوږدو لیکو د جوړیدو او د دغسې محصولاتو جیره بندي سبب ګرځي.

**دویم:** له کومه ځایه چې د پرداخت اندازه کارګرانو ته، د هغوي کار او عمل ته په نه پاملرنې سره صورت نیسي، نو په دی توګه معمولاً مزدونه او اجورې په مختلفو سطحو کې یو شي وي. په دې صورت کې د پلانګذارۍ سیستم د کار ګرانو نوښت په پام کې نه نیسي.

**دریم:** کله چې قیمتونه او د معاشونو سطحه له بازار سره متفاوت وي، هر اړخیزه کنترول د فردي قیمتونو په هکله ضروري او لازمي وي. په دې دلیل په ډیرو پلانګذارۍ شویو اقتصادونو کې د مزد او معاش سیستم ټاکل او قیمت باید انعطاف پذیر وي او د ډیرو شیانو قیمتونه او معاشونه (اجورې) د بازار د ځانګړتیا وو په واسطه او د عرضه او تقاضا په مرسته ټاکل کیږي.

**څلورم:** ډیر اقتصاد پوهان عقیده لري، چې که هر څه فردي استثمار، غیر معقوله ګټه او نور د سرمایه دارۍ سیستم د نا مطلوبو خصوصیاتو له جملې څخه

دي ، مگر دغه خصوصیت چې په استبدادی او مطلقه نظامونو په سوسیالیستی هیوادونو کې وجود درلود ، ناچیز دي ، او د پلانگذارانو د مفکورې او د خلکو د مفکورې تر منځ زیات توپیر وجود لري ، چې هر یو متفاوتې غوښتنې تعقیبوي.

### د مختلط اقتصاد سیستم Mint Economy:

د غیر متمرکز اقتصاد د خصوصیاتو څخه یو دادی چې د عمومي او خصوصي اقتصاد مختلفې برخی د یو بل په څنگ کې واقع دي ، او خپل فعالیت ته ادامه ورکوي. په غیر متمرکز اقتصاد کې خصوصي تصدي د مالي استقلال او آزادو اقتصادي فعالیتونو امکاناتو لرونکی دي ، او په ډیرو حالاتو کې د عمومی برخې ځینې مؤسساتو د خصوصي برخې پر اساس بناموندلي ، او د اقتصادي آزادي عمل څخه مستفید کیږي.

نو ځکه مختلط اقتصاد ، د اقتصاد بازار هغه قسم دی چې په هغه کې دواړه خصوصي او دولتي برخې کولای شي په فعالیتونو کې شرکت ولري. دا واضحه خبره ده چې د ذکر شویو برخو مشارکت اندازه یو شان نه وي. او په ډیرو هیوادو کې دغه برخې متناسبې نه دي.

اوسنی او معاصر اقتصاد د دواړو برخو څخه په استفادې سره فعالیت کوي ، او د مختلط د مالکیت سیستم د معاصرو سیستمونو له مهمو مشخصاتو څخه دی ، که څه هم د ختیځې اروپا به هیوادونو کې او پخواني شوروي کې د خصوصي برخې د مشارکت درجه محدود وه ، مگر په دې اقتصادونو کې هم خصوصي برخه د دې هیوادونو په اجتماعي تولید کې د کتنی وړ ونډه لري.

په مختلط اقتصاد کې مختلف دولتي او خصوصي اقتصادي روشونه او تگ لارې ، د مرکزي او غیر مرکزي پلان اقتصاد ، انحصاري او رقابت دیو او بل څنگ کې فعالیت کوي. د معاصرې نړۍ د اقتصادي واقعیتونو به نظر کې نیولو سره ، کولای شو ووایو چې د نړۍ ټول هیوادونه په واقع کې د مختلط اقتصاد لرونکي دي. په دې تفاوت چې په ځینو هیوادونو کې د دولتي برخې نفوذ

او اقتدار برجسته او په ځينې هيوادونو کې د خصوصي برخې اقتصادي او مالي امکانات ډير او پراخه وي. د مختلط اقتصاد د تگ لارې پيدايښت د سرمايدارې اقتصاد د شرايطو د تغير او تحول د معيشتي سيستم د ضرورت تطبيق د زماني او مکاني اړتياوو نتيجه ده، او د نولسمې پيړۍ د رقابتي اقتصادي نظام د فعاليتونو په پيل کې د دولت برخه او مشارکت په اقتصادي چارو کې مردود گڼل کيده. د آزاد بازار نظام د خپلو بدلونونو په جريان کې له ستونزو سره مخامخ شول. خصوصي مؤسسات د خپلې گټې په تعقيبولو سره، د ټولنيز و مسايلو د حل د پاره لکه د قيمتونو لوړيدل، وزگاري، تورم او د قيمتونو جگوالي او نورو سره حساسيت نه درلود، او ددې مسئلو حل د دولت سياستونو، تدابيرو او اقداماتو پورې مربوط ؤ. نو ځکه د وخت په تيريدو سره دولتونو د زيربنايي موضوعاتو دايجاد په منظور او د اقتصادي تأسيساتو په جوړولو، او د ځينې اساسي مسئلو د حل په منظور او دټولنيز عدالت د تأمينولو په خاطر، په اقتصادي چارو کې په مداخله لاس پورې کړ او د زماني په پرمختگ او په اقتصادي او اجتماعي وضع کې تغيراتو او بدلونونو، دغه مداخلې پراخې کړې. او د دولت دخالت د اقتصادي په مختلفو برخو کې د معاصر اقتصاد په قبول شوي اصل تبديل شو.

مختلط اقتصاد د مرکزي پلان اقتصاد او آزاد بازار اقتصاد د تعديل په نتيجه کې منځته راغی او دواړه مسلط اقتصادي سيستمونه د اقتصادي او اجتماعي واقعيتونو په درک سره دغه سيستم لږ او ډير خپل اقتصادي نظام کې شامل کړ، او د نړۍ ډير مختلط اقتصادي سيستم، هماغه د خصوصي برخی په څنگ کې د عمومي اقتصاد وجود او شتوالی دې.

د نړۍ سرمايه داري هيوادونو، لکه امريکا، انگلستان او فرانسه د دولت د دخالت مسئله په اقتصاد کې ومنله او ددې تحول له مجموعې څخه د نړيوال اقتصاد مختلط سيستم منځ ته راغی.

پنځم څپرکی:

# سوداګري او د مالونو تبادله

## په اقتصاد کې د سوداګرۍ او د مالونو تبادلې نقش او اهمیت:

سوداګري د انساني ټولنې په ژوندانه کې یو لازمي کار دی، تجاران د انسانانو لومړنی او په مجموع کې ټول ضرورتونه تهیه او هغوی ته وړاندې کوي، او په حقیقت کې د مالونو او شیانو د تقسیم او ویش دنده په غاړه لري.

داخلي سوداګرۍ په اوسنیو شرایطو کې په کلي توګه بدلون موندلی، او خرڅوونکي په حتمي توګه تولیدونکي نه وي. په نوی اقتصادي سیستم کې خرڅوونکی د بیلابیلو مؤسساتو د محصولاتو توزیع کوونکي دي، چې د خپل خدمت ارزښت د شیانو د اسانولو له قیمته څخه لاس ته راوړي.

خرڅوونکی دا اړتیا نلري، چې لکه د پخوا په شان خپل ګدامونه له مختلفو شیانو ډک کړي، بلکه د خرڅلاو د اندازې په نظر کې نیولو سره، خپلې اړتیاوې او احتیاجات پیشبیني کوي او پوهیږي چې د تولیدونکو مؤسسو ګدامونه تل د هغوی په واک کې دي.

په اوسنیو شرایطو کې پیریدونکی (مشتری) په خرڅوونکی پسې نه ځي، بلکه د نن ورځی سوداګري دې حال ته رسیدلې، چې خرڅوونکی د ټولو امکاناتو څخه استفاده کوي، ترڅو پیریدونکی ځان ته کش کړي او دغه کار ددې سبب شوی دی، ترڅو هر څوک کوښښ وکړي، چې کافي وسایل را ټول کړي او ښه کار وکړي، او د پیریدونکو (مشتریانو) د توجه په جلبولو، خپل کار ته رونق او پرمختیا ورکړي.

د مالونو او شیانو د تجارت او تبادلې مشخصات په اوسنیو شرایطو کې

آزاد بازار ته دا امکان ور بښلی دی چې په پر نفوسو ښارونو کې ټول احتياجات او غذايي، صحي د استوګنې او نور ضرورتونه په دې ښار کې په طبيعي او عادي نظم کار وکړي، په داسې حال کې چې هيڅ ډول کمنلاره او پلان د دې کارونو په انسجام کې موجود نه وي. نو ځکه بازار او د شيانو او مالونو تبادله د غه نظم او هماهنګی د ضرورتونو د تأمين له پاره تجارت ايجاد کړی دي. په بل عبارت، افراد او اشخاص د خپلې ګټې په پلټنه، د عامه ګټې په اوتوماتيک (خودکار) توګه تأمين او طبيعي نظم برقرار دي. د غه د ګټې جلبول د دی سبب شوی چې هرڅوک کوښښ وکړي چې کافي وسايل را ټول کړي، ترڅو ډير کار وکړي. او پيريدونکی (مشتری) د رضايت په جلبولو سره خپل کارته رونق ورکړي.

د پيريدلو (خريد) د قدرت په زياتيدو مختلفو محصولاتو ته ضرورت زياتيږي، تجارت او د مالونو تبادله زيات رونق مومي او د توليداتو او محصولاتو توزيع لمن هم پراخيږي. په اوسنۍ نړۍ کې د نړۍ ټول هيوادونه په ټولو توليدي برخو کې د ټولو محصولاتو په کار اچول او د هغه د ويش توان نلري، او په يوه توليدي رشته کې اختصاص لرل او د هغه په تجارت کې زياته ګټه لاس ته ورو ړي. په ملي او هيوادنۍ سطح هم د يو هيواد ټولې سيمې د خپل ټولنيز ژوندانه د ټولو شيانو په توليد لاس نه پورې کوي. بلکې د توليد د عواملو په اختصاص سره، په هغو ساحو کې چې د غه سيمې په هغه رشته کې يا په هغه توليد کې مهارت لري، لاس پورې کوي، او د دې محصولاتو په وړاندې کولو (عرضه کولو) د خرڅولو د هر قسم محصولاتو چې د هيواد په نورو سيمو کې توليديږي، ګټې لاس ته راوړي او د يوې ساحې توليدات د يو هيواد په ټولو ساحو کې ويش او خپريږي.

## د تجارت او تبادلې د تحولاتو تاريخي بهير:

تجارت او تبادله په اوسنۍ ټولنه کې زيات اهميت لري، او واضحه ده چې تقريباً ټول محصولات د تبادلې په منظور توليديږي. د تصديو ټول توليدات، او د

گدامونو زیرمې د خرځلاو د پاره صورت نیسي. صرف د دې تولیداتو لږه برخه د مؤلدینو د شخصي لګښت د پاره اختصاص مومي. په مختلفو علمي او فرهنګي خدمتونو کې په قسماقسم ټولنیزو کسبو کې هم د هغوی مادي او تبادلوي ارزښت په نظر کې نیول کیږي. او تبادلوي ارزښت او متوقعه ګټه هم په نظر کې نیسي. د ټول اهمیت او ارزښته سره چې تبادله یې په ټولنیز ژوندانه کې لري، کولای شو ووایو، چې دغه پدیده د انسان د تمدن د پیل سره یو ځای منځ ته نه ده راغلې، بلکې د شرایطو او اقتصادي وضعې او د انساني ټولنې د ژوندانه د تحولاتو زیږنده (مولود) ؤ اودي.

**لمړی:** په عنعنوي اقتصاد ونوکې، چې تولیدکورنیو د مصرف په منظور صورت ومونده، هیڅ قسم مبادل او راکړه ورکړه مطرح نه ؤ، او هرې کورنۍ په مستقله توګه خپل احتیاجات او ضروریات په خپل چاپیریال کې رفع کول او مبادلې یوازې ځینو محصولاتو ته اختصاص درلود. چې ددې خلکو او افرادو په محیط کې یا موجود نه و، یا نه تولید کیده. دغې تبادلې په پیل کې ډیر استثنائي اړخ درلود، مګر د وخت په تیریدو سره ددغه تبادلې بازار پراختیا وموندہ او ددې منظور له پاره د هرې سیمې په سرحد کې یا په خاصو مناطقو کې بازارونه منځ ته راغلل.

**دویم:** د ښارونو په پراخیدو او د مختلفو حرفو او کسبونو په ایجادیدو او د مصرف کوونکي او تولید کوونکي تجمع په شهري مرکزونو کښې بازارونه تشکیلیږي. بازارونو د ښارونو په مرکزونوکې وده او اکشاف وکړ، تولیدونکو او مصرف کوونکو په هغه ځای کې یو د بل سره ملاقات کاوه. او په دی توګه تبادله او تجارت د وخت په تیریدو سره انکشاف او وده وکړه.

**دریم:** د لویو تولیدي او صنعتي مؤسسو او فابریکو په منځ ته راتلو او د ښارونو په پراختیا سره، ملي بازارونو د محلي بازار ونو ځاي ونیوا و پدې شرایطو کې تبادلې او تجارت ځانته واقعي مفهوم غوره کړ. نوی دولتونه هم منځ ته راغلل،

او د بازارونو پر مختللي او تکاملي روند له پخوا څخه غبنتلی او پياوړی شو. له دې وخت څخه وروسته استعماري بازارونه هم منځ ته راغلل او په اته لسمې پيړۍ کې د سوداګرۍ او د مالونو د تبادلې له پاره لوی شرکتونه تشکيل شول.

بالاخره په څلورمه دوره کې، د اوسپنې د لارې په منځ ته راتلو، په فضايي، ځمکني او بحري انتقالاتو په پراختيا سره نړيوال بازارونه منځ ته راغلل او سوداګرۍ په نړيوالو سطحو لوی موقف پيدا کړ. نړيوال تجارت زموږ د زمانې له مهمو مسائلو څخه ګڼل کيږي.

## د مالونو د تبادلې او سوداګرۍ بنيګنې:

کله چې مبادلې د شيانو او کاليو د تبادلې په شکل جريان درلود او اقتصاد په ابتدايي حالت کې وځيني معضلی د شيانو د عمومي معادلت له پاره چې د هغه پواسطه مبادلې په آسانه توګه صورت نيوه، تبارز کاوه. پروبلم له دې څخه سرچينه اخلي چې مثلاً يوکس د اړتياوو د رفع کولو د پاره، ټوکرانو (منسوجاتو) ته اړتيا درلوده. خو هغه پسه په اختيار او واک کې درلود، مګر د پسه په ورلندې کولو، او بدل شوی ټوکرانو (منسوجاتو) دلاس ته راوړلو په خاطر اړ ؤ چې له مختلفو کسانو سره مخامخ او مواجه شي. او له هر چا څخه وغواړي ترڅو د پسه په بدل کې ټوکران ورته عرضه کړي. مګر بنايي د خپل د نظر وړ جنس د موندلو د پاره يې ډير وخت تيراوه، ترڅو چې د خپل شی په موندلو به بريالی کيده، نو ځکه ديو ناچيز شی د بل شی خاوند اړ ؤ ترڅو د هغه سړی پلټنې ته ووځي چې د هغه د نظر وړ کالي او شيان په اختيار کې لري او بر سيره پردې د دوه تبادله شوی شيانو معادلت د بل سره هم يوه ستونزه وه، چې په عنعنوي او تبادلوي اقتصاد کې افراد او اشخاص ورسره مخامخ وو، او بايد اوږد او سخت پړاوونه يې طی کړای وای، نو ځکه د دې مشکل د حل د پاره د يو شي ابجادول او اختراع ضرور او لازمي په نظر بريښيده، ترڅو د ټولنې افرادو دغه ثابت شي د خپل جنس به مقابل کې قبول کړای وای. په لومړي سر کې

سپین زر د دې په منظور ومنل شو او د شیانو او مالونو د تبادلې په جریان کې اغیزمن واقع شو. له دې څخه وروسته خلکو وکولی شول خپل مالونه او اجناس په سپین زرو تبدیل کړي. او وروسته د مشروط او اجتماعي قرارداد له مخې چې دغه نجیبه فلز معادل منل شوی ؤ، خپل د نظر وړ نور شیان یې د سپین زرو معاوضه کول، او په دې توګه په مبادله او سوداګرۍ کې اسانتیا منځ ته راغله که خلک په اوسنیو شرایطو کې خپل مالونه او جناس په پیسو تبدیلوي، د دې معنا لري چې پدې پیسو کولای شي، په هر وخت او زمان کې خپل د نظر وړ اجناس او شیان راونیسي. دغه دریم ګړی شی چې د (پیسو) په نامه یاد شو، په تبادله او سوداګرۍ کې زیات اهمیت پیدا کړ او د ټولنې په اقتصادي ژوندانه کې د سترو بدلونونو او تغیراتو سبب شو. او همدارنګه سهولتونه او ښیګنې یې په سوداګرۍ او تبادله کې منځ ته راوړې چې په لاندې توګه مشخص کیږي:

۱ – مبادله او تجارت د دې سبب ګرځي ترڅو د نړۍ د مختلفو نقاطو او ځایونو محصولات، لکه د منځني ختیځ نفت، د جاپان الکترونیکی وسایل، او د اروپا غذایي مواد د مختلفو ټولنو په اختیار کې واقع شي. که تبادله او تجارت نه وای، نو د نړۍ د شیانو او کالیو څخه په صحیحه توګه استفاده نه کیدله.

۲ – تبادله او سوداګرۍ د ټولنې د پاره د کار او مشغولیت د ایجادیدو سبب ګرځي. او خلک کار او فعالیت ته مجبوروي. که مبادلې وجود نه درلود هر نفر به مجبوراً د خپل اړتیا وړ تولید پخپله تهیه کاوه، که د هر نفر احتیاجات زیات وای، نو په دی توګه مجبور و د دغه ټولو ضرورتونو ته دسترسي ولري او ټول یې تولید، او هغه کارونه اجراء کړي چې د هغه د توان څخه په عادي حالت کې وتلې موضوع ده، او یا په داسي کارونو کې مصروف شي چې د هغه قوه او انرژي زیات مصرف نشي چې له نیکه مرغه مبادلې او تجارت د انسان دغه ستونزه حل کړې ده او خلک په اطمینان سره د مبادلې په وسیله کولای شي خپل هر قسم ضرورت مرفوع کړي او هر نفر د خپل ذوق او استعداد په مطابق کار وکړي.

۳- تبادله او تجارت د راکړې ورکړې د مختلفو فعالیتونو د رشد او پراختیا سبب شو. بازارونه منځ ته راغلل او ورځ په ورځ یې وده او انکشاف وکړ. او د مالونو راکړې، ورکړې ساحه پخه شوه، مختلف وزنونه د شیانو د اندزه کولو او وزنولو له پاره منځ ته راغلل، او په نهایت کې راکړه او ورکړې په اقتصاد کې د حمل او نقل د انکشاف او د انتقالاتو پروسې د چټکتیا سبب شو. او بالاخره یې اقتصادي وده او پراختیا منځ ته راوړه.

## د متشبثو کسانو منځ ته راتګ او د سوداګرۍ رونق:

سوداګري د عامو خلکو د تصور په خلاف د قبایلو او کورنیو په منځ کې نه ده پیل شوې. ځکه تخصص او د کار تقسیم د کورنیو او قبایلو په منځ کې محدود ؤ، او خلکو اجناس او مواد صرف د خپل احتیاجاتو د لرې کولو په مقصد تبادله کول. په دې شرایطو کې داسې افرادو او اشخاصو وجود نه درلود چې په دایمي توګه تجارت وکړي.

د مبادلې محدودیت او د تولیدي شیانو کموالی او محدودیت د راکړې، او ورکړې د انکشاف او پراختیا مانع کیدل، ځکه چې دغه ټولو قومونو یورنګ محصول او یورنګ احتیاجات لرل، نو ځکه واقعي تجارت هغه وخت پیل شو چې بحري مسافرتونه ممکن شول او د لیرې هیوادونو په منځ کې، مختلف مواد او محصولات تبادله شول، نو ځکه سوداګري مخکښې له دې څخه چې په داخل کې مروج شي، خارجي بڼه غوره کړه. او مخکې له دې چې ځمکنۍ شي بحري سوداګرۍ رواج وموند.

د سوداګرۍ د پیدا کیدو په تاریخچه کې دوه دورې سره فرق لري:

۱- لاسي خرځلاو د سوداګرۍ دو یا ګرځنده سوداګر: چې همدا اوس هم په ډیر لیرې او د آسیا او افریقا په کم انکشافو سیمو رواج لري. په دې قسم سوداګرۍ

کې د سوداګرۍ د مال کاروانونه حرکت کوي او خپل مالونه په حیواناتو باندې باروي او انتقال ورکوي. هرڅه ګټې په دې قسم سوداګرۍ کې شته. مګر د انتقالي مالونو د کموالی په نسبت یې ګټه نا چیزه ده.

۲ - په هر ځای کې چې سوداګرۍ لږ وده کوله، د ګرځندو سوداګر خپل ځای مقیم او ځای پرځای سوداګروته پرېښود. مخکښې له دې څخه سوداګر پیریدونکی (مشتری) پسې تلل. مګر په اوسنیو شرایطو کې پیریدونکو (خریدار) د سواګرو په لټه کې دی. مګر د پیریدونکي (مشتریانو) د جلبولو د پاره سوداګران د ځینو وسایلو څخه لکه، اعلانات، ابلاغیې، او د استازیو یا د اجناسو نمونه ورلیږل او د تصویرو د نصب څخه کار اخلي.

## بازار موندنه:

بازار موندنه مارکیټنګ په هغه تجارتي فعالیتو کې شاملیږي، چې د شیانو او خدماتو جریان په تولید کوونکی څخه مصرف کوونکی ته ورسوي. او لاندې مادې به برکې نیسي:

۱ - مصرف کوونکی وضعیت او پیرودل او خرڅول یعنې خریدو فروش (عرضه او تقاضا)

۲ - د هغه کار خصوصیت چې د غه قسم فعالیتونه سرته رسوي، لکه (تجارتی تشکیلات)

۳ - ځینې موارد د صنعتي او زراعتي تولیدات، د معدن استخراج پانګه اچونې او نورې چارې چې دولت د هغه اجرأ په غاړه لري.

## د بازار موندني اهمیت:

د بازار موندني (مارکیټنګ) څخه هدف د محصولاتو خرڅونه نه ده، بلکې په بازار موندنه کې هغه ټولې چارې شاملې دی، چې مالونه په ټاکلی وخت کې، پیریدونکی (مشتری) ته رسول کیږي. او په دې توګه مؤلدین لوړې ګټې لاس

ته راوړي. د غه عملیه د مصرف کوونکي د احتیاج د پوهیدو او پیژندنه. عرضه او تقاضا، اشتهار او د مصرف کوونکي پوهول او آګاه کول، د هغوی هڅول د نمونې تقسیم او توزیع او په محلي مرکزونو کې عمده فروشي او پرچون فروشي له نمایش څخه عبارت دی.

## د بازار موندنې هدفونه:

د بازار موندنې مارکیټنګ په هدفونو کې لاندي مسایل شامل دي:

د ډیرې او اعظمي ګټې لاس ته راوړل، انساني ضرورتونه رفع کول، تولیدي محصولاتو ته د زیاتې تقاضا او غوښتنې ایجادول، د آسانتیا وو او سهولتونو ایجادول د اعظمي استفادې په منظور د تولید له پاره د ظرفیت او حامي طاقت لوړول، د اقتصادي پرمختګ او د ملي اقتصاد دودی او انکشاف د پاره مرسته او مساعدت.

## د بازار موندنې فعالیتونه:

د بازار موندنې د فعالیتونو ساحه ټول کاري جریانونه د هغه د تولید او ګټې پلان چې د محصولاتو د خرڅلاو څخه لاس ته راځي احتوأ کوي. او له دې لاندې فعالیتونو څخه عبارت دي:

- د بازار مطالعه او پیژندنه.
- د تولیداتو له پاره تقاضا را منیځ ته کول.
- د محصولاتو ټولونه او پیرودل د عرضې یا خرڅلاو په منظور.
- په ګدامونو کې د زیرمه کیدونکي محصولاتو تحویل.
- د خرڅیدونکی مخصولاتو زیرمه.
- د محصولاتو ستندرد او درجه بندي.
- د موادو دسته بندي وسایلو تهیه، د محصولاتو درجه بندي، د حمل او نقل او پروسس.

- بسته بندي او انتقال.
- د قیمتونو د ثابت ساتلو په منظور د مالي منابعو ایجادول.
- د پلان طرح او مشوره ورکول د وروستیو تولیداتو په برخه کې.

## د بازاریابی د مطالعې طریقې:

کولای شو بازار موندنه (مارکیټنګ) په لاندې طریقو او روشونو ترمطالعې لاندې ونیسو:

### ۱- د بازارموندنې عملیات:

بازار موندنه د تجاتي چارو ښه او غوره عمل دی. د سوداګرۍ ځینې چارې اوموارد یو او بل پورې تړلي دي او ددوی د کار شکل داسې دی چې ټول مسایل د شیانو په بهیر کې د تولید کوونکی څخه د مصرف کوونکی ته، سره د خالت لري. په همدې اساس هغه دسته عملیاتو چې د شیانو د خرڅلاو اوپیرودل، د هغه بیا خرڅول، کالیو او شیانو حمل او نقل او ګدام کول، تنظیمول، قیمت ګذاري، او په پای کې د هغه تحویل د مشتریانو (پیریدونکی) یوې ډلې ته په غاړه لري. د بازار موندنې د عملیو جزء بلل کیږي.

### ۲- د بازارموندنې مرستو تجزیه او تحلیل:

د بازار موندنې مؤسسو مشخصه طبقه بندي چې یو د بله څخه توپیر کیږي په لاندې ډول دی: واړه خرڅوونکي (خورده فروشان) عمده توزیع کوونکي او د بازار یابی چارې سهولت ښنونکی مؤسسې. لکه تحقیقي، تبلیغاتي، مبادله کوونکي، او اعتبار ورکوونکې مؤسسې. لږ خرڅوونکی (پرچون فروشان) کولای شو په کوچنیو ګروپونو تقسیم کړو، لکه سوپر مارکیټونه، د مصرف تعاوني شرکتونه او یا تخفیف ورکوونکی خرڅلاو ځایونه (فروشګاوی) عمده خرڅوونکي هم کولای شو په کوچنیو ګروپونو وویشو. چې سترو شرکتونو نمایندګان او د هغه له محلي شعبې څخه متشکل دي.

### ۳- د شيانو ډول ته په پاملرنې سره د بررسي او ويش بهير:

په بازار موندنې کې د مطالعې دريم روش. د يو بل پسې محصولاتو او يا دا چې د مختلفو قسمونو محصولاتو بررسي کول دي. او دغه مطالعه د توليدونکي څخه پيل او په آخر کې په مصرف کوونکي ختميږي.

د داسې مطالعې په جريان کې مختلفې مؤسسې او بازار موندنې سازمانونه چې هر محصول د تقسيم په بهير کې واقع دي، تر مطالعې لاندې نيول کيږي. دغه روش او تګ لاره واضح کوي چې څرنګه د بازار موندنې عمليات، له اقتصادي نظره د يو معين محصول د توليد له نقطې سره توپير کوي.

## بازار او د هغه ډولونه

بازار په معمولي مفهوم له هغه ځايه څخه عبارت دی چې پيرودونکي (خريدار) او مصرف کوونکي هلته سره مخامخ کيږي. په بل عبارت بازار عبارت له هغې نقطې څخه دی چې په هغه کې عرضه کوونکي او تقاضا کوونکي يو د بل سره ليدنه کتنه کوي چې په لاندې توګه د بازار ډولونه څېړل کيږي:

## د اجناسو بازار:

په دې ډول کې پير دوونکي او خرڅوونکي په راکړه ورکړه او د کاليو (اجناسو) په خريد او فروش بوخت دي. د اجناسو بازار ممکن د يو ډول جنس (متاع) د عرضې خصوصيت ولري، لکه د اوسپنې خرڅوونکي بازار، د تهوکرانو خرڅولو بازار او نور او يا دا چې په عين وخت کې د مختلفو شيانو او کاليو خرڅولو ته اقدام کوي.

د اجناسو په بازار کې راکړه په دوه ډوله اجرا کيږي: يو د کاليو (شيانو) معاوضه له نورو کاليو سره، او بل کالي (شيان) د پيسو سره. د اجناسو معاوضه په اجناسو سره ډېر مشکلات لري، ځکه چې پيرودونکي (خريدار) او خرڅوونکي بايد

هغه کالي او شیان پیدا کړي، چې مساوي ارزښت ولري، دغه مشکل ته په پاملرنې سره د پخوا څخه راکړې او ورکړې د اسانتیا او سهولت له پاره یوه واسطه چې پیسې (پول) نومیږي، منځ ته راغلی.

## د پیسې او پانګې بازار:

د پیسی او پانګې بازار لوی او پراخ مفهوم لري، او ډېره پراخه حوزه به برکې نیسي. د پیسی او سرمایې په بازار کې د پیسی او سرمایې د عرضه کوونکی او تقاضا کوونکي خصوصي افراد او اشخاص، بانکونه، دولتي او نړیوالي تصدی ګانی او سازمانونه شامل دي. د پیسې او پانګې په بازار کې، برسیره پرپولي معاملو او قرضي، ټول کریډیټونه، د شرکتونو سهمونه او دولتي ارزښت لرونکې ورقې پورې مربوطې معاملې اجراء کیږي، علاوتاً د بیمې شرکتونه هم په پولي او مالي معاملو کې ستره ونډه لري.

## د کار بازار:

د کار بازار د یوې یولې جغرافیائی ملي او بین المللی سیمې څخه عبارت دی چې پکې د مختلفو مصروفیتونو خاوندان او د هغوی تقاضا کوونکي یو له بل سره ملاقات کوي.

د کار قیمت یعنې مزد، لکه د کالیو او اجناسو قیمت او د پیسو حاصل په ښپړه توګه د مختلفو اقتصادي او ټولنیزو عواملو تر تاثیر لاندې دي، دغه عوامل په طبیعي، ټکنولوژیکي، پانګه اچونه او نورو امکاناتو پورې شامل دی.

## د سوداګرۍ شرکتونو ډولونه:

د هر اقتصاد بریالیتوب هغو سازمانو پورې مربوط دی چې، په ټولنه کې اقتصادي او تولیدی فعالیتونه مخ ته بیائي. په تیرو تایخي لومړنیو ټولنو کې، تولیدی سازمان عمدتاً انفرادي و، او د کورنی په منځ ته راتلو کورنی (فامیلی) اقتصاد شکل وینو، او تولیدي سازمان د ټولنې او اقتصادی نظامونو د پرمختګ

سره جوخت سرعت وموند او وده يې وکړه، او په اوسنيو شرايطو کې لويې اقتصادي اتحاد يې توليدي او دويش فعاليتونه مخ ته بيائي، چې په لاندې توګه د شرکتونو ډولونه ډير لنډ در پيژنو:

## تضامني شرکت:

تضامني شرکتونه هغه مؤسسې دي، چې د يو شمير کسانو په وسيله د اقتصادي فعاليتونو د سرته رسولو له پاره منځ ته راځي. په تضامني شرکتونو کې، شريکان د خپلې ټولې شتمنۍ (دارائي) سره مشترکاً د شرکت د مالي تعهداتو مسؤل دي. د شرکت په زيانمن کيدو يا ماتې سره مخامخ کيدو، شريکان بايد د خپلې شتمنۍ څخه د شرکت قرضې او پورونه ادا کړي. د شرکت ګټه د شراکت پر بنسټ او د شريکانو په موافقې سره ويشل کيږي.

## سهامي شرکت:

سهامي شرکت هغه دی، چې د يو زيات شمير سهمونو او پانګه لرونکی څخه تشکيل شوې وي. په سهامی شرکتو کې، پانګه د سهمونو په شمير سره مساوي ويشل کيږي. هر څوک د برخې په پيرودلو سره کولای شي چې شرکت کې ګډون وکړي. د تضامني شرکتو په خلاف، د سهمونو د خاوندانو مسؤليت د شرکت په فعاليتونو کې، د هماغه اندازه پانګې او سهمونو پورې محدود دی، چې په شرکت کې يې لري.

## تعاوني شرکتونه:

د تعاوني شرکتونو تشکيلات د ټولنې د پراخو پرګنو د ګټې د ساتنې پاره منځ ته راځي، او د يو رنګ خاص فعاليت له پاره رامينځ ته کيږي، لکه دويش او مصرف تعاوني شرکت او داسې نور. ټول پورتني شرکتونه د تشکيلاتو له نظره د مديره هيئت او نظار هيئت لرونکی دي، چې کتابونه او لازمه سندونه د شرکت د مالي او اداري چارو د پرمخ بيولو له پاره تنظيموي.

مدیره هیئت په حقیقت کې د شرکت اجرائیه قوه ده، چې د یو ټاکلي وخت له پاره د عمومي ټولنې له خوا ټاکل کیږي.

## د عنان شرکت:

د اسلامي فقهي له نظره، د عنان په شرکت کې، شریکان د مالونو د فتحی او یا تصرف په اختیار کې، یو د بل سره مساوي وي. شریکان د شرکت په کارونو او پانګه اچونه کې یو د بل سره سهیم دي او همکاري کوي. او شریکان د نورو له اجازې څخه پرته نشي کولای د شرکت په مال کې تصرف وکړي. په داسې حال کې چې د شریکانو برخه مساوي وي، په ګټه او زیان کې هم سره مساوي وي، او که نه ګټه او زیان د هغه قرار داد په اساس چې لاس لیک کړی یې دي، تقسیموي.

## د مضاربې شرکت:

د مضاربې شرکت دا دی چې یو شخص یو شی بل چاته ور کوي، ترڅو هغه په کار واچوي او د هغه په ګټه په یو ټاکلي نسبت شریک شي.

دوه یا زیات کسان خپل منځ کې د شرکت وعده کوي، په دې شرط چې یو خوا پانګه ور کوي او بله خوا یا بل جانب کار کول په غاړه اخلي، او هغه ګټه چې لاس ته راځي، د هغه قرار داد په اساس چې په خپل منځ کې یې سره کړی دی، د دواړو خواوو په منځ ویشل کیږي، او که چیرته زیان او نقصان منځ ته راځي، ټول به سرمایې ته متوجه وي او عامل (هغه څوک چې کار کوي) مالي خسارې په غاړه نه اخلي، ځکه چې عامل امین دی او ضامن به نه وي.

## د مفاوضې شرکت:

هغه شرکت دی چې دوه یا زیات کسان، یو د بل سره وعده کوي چې، په هر هغه شی کې چې لاس ته راوړي او یا ضرر کوي، یو او بل سره شریک دي، حتی که یو د هغوی څخه مال په میراث وړي، او یا کوم ګنج پیدا کړي، او یا تجارت وکړی او یا ګټه لاس ته راوړی ... او که هم ضرر وکړي او یا د چا مال له منځه وړي، په دې ټولې ګټې او ضرر کې یو د بل سره شریک دی.

## د وجود شرکت:

دا شرکت داسې دی، چې دوه کسه په بازار کې د خلکو په منځ کې اعتبار لري، مگر مال او سرمایه (پانگه) نلري، دوی خپل منځ کې وعده کوي چې هر یو پخپله ذمه کې د نیسې په ډول څه شی ونه پیري، او هغه شی چې هریو پیرودی دي، د دواړو په منځ کې شریک وي، هغه بیا خرڅوي، او وروسته د اجناسو د پیسې ورکولو اداء کولو، حاصل شوې گټه پخپل منځ کې سره ویشي.

او یا یو شخص پیژندل شوی او معتبر، مگر بې مال او ثروت او بل کس نوم ورکی او بې اعتبار، اما پانگه وال (سرمایه دار) خپل منځ کې قرار داد کوي، چې مال د سرمایې د خاوند په اختیار کې وي، مگر بل د هغه سرمایې او مال سره کار او فعالیت وکړي، یا د اعتبار وړ کس د نیسی په ډول څه شي و پیري، او د هغه خرڅلاو بې اعتبار کس ته پریږدي، او هغه گټه چې لاس ته راځي، خپل منځ کې سره تقسیم کړي، او یا په اصطلاح یو پیژندل شوی شخص د یو نوم ورکی شخص مال په یو لوړ قیمت او گټه خرڅ کړی، ترڅو یو مقدار د هغه څخه ده ته پاتې شي.

## دابدان یا اعمال شرکت:

د ابدان یا اعمال شرکت له هغه شرکته څخه عبارت دی، چې هر یو بیل په کار کې مشغول شي، او په هر شي کې چې گټه لاس ته راوړي، خپل منځ کې به شرکت وي، که د دوی د کار نوع او شکل سره مساوي یا مساوي نه وي.

## محدود المسؤولیت شرکت (Limited):

هغه تجارتي شرکتونه چې د هغوی سرمایه په سهمونو تقسیم نه وي، او په شریک کې د هر یو مسؤلیت د تعهد شوي سرمایې په اندازه وي.

## خاموش شرکت:

مخفي یا خاموش شرکت هغه دی چې، د یو یا څو کسو په منځ کې تشکیل شوی وی، او شریکان نه غواړي، چې د هغوی نوم او سرمایه درج او ثبت شي، او د خپل نورو خپلوانو او وابسته گانو په نوم شرکت تأسیس او په کار اچوي.

# نړیواله سوداګري

د اقتصادي ودې او انکشاف په نظریو کې، ځینې نظریې وجود لري، چې بهرنۍ سوداګري، او د مالونو د انتقال آزادي بهرته او د هغه برعکس د پرمختیائي هېوادونو اقتصادي انکشاف موجب ګرځي او د اقتصادي پرمختګ چټکتیا زیاتوي، برسیره پردې نورې نظریې هم موجودې دي، چې د نړیوالې سوداګرۍ آزادي او د سرمایې د عاملو انتقال د پرمخ تللې، او د دې عواملو لرونکي هېوادو په ګټه او د هغه هېوادونو په زیان تمامیږي چې د هغوی صنایعو نوی انکشاف کړی وي، او د نړیوالو بازارونو سره سیالي (رقابت) نشي کولی، مګر د نننۍ نړۍ اقتصادي واقعیت، او د دغسې روابطو د ګټې او زیان څخه پرته، د دې څرګندوي دي، چې دغه رابطې د نړیوال اقتصاد د انکشاف او ودې او د تکنالوژي پراختیا په پیل کې تراوسه پورې د پرمختګ او پراختیا سره مخامخ دې، او د نړۍ ټول هېوادونه په یو قسم نه، یو قسم، یو باڅو باندنې محصول ته متکي وي، او دغه اقتصادي اړیکې او مناسبات دهرې دورې په نړیواله سطحه، له تیر دورانه څخه ډېر زیاتیږي. د نړۍ هېوادونه خپله دودې او پرمختیا بهیر د نړیوال تجارت د مناسباتو او روابطو په انکشاف پیاوړی کړی، او په ځینو مواردو کې د دې مبادلې له جریان څخه د خپل اقتصادي رشد او پرمختګ له پاره هم ګټې اخیستې دي.

داسې پوښتنه مطرح کیږي چې سوداګري تر کومې اندازې پورې د هېوادونو په اقتصادي انکشاف کې برخه اخستی شي؟ د کلاسیک اقتصاد پوهانو او وروسته، نړیوال سوداګري په اقتصادي وده او انکشاف کې د موتور په حیث تلقي کیږي. په اوسنیو شرایطو کې د تجارت برخه د اقتصادي ځواک په زیاتیدو، او د تولید د عواملو او اقتصادي جریان څخه استفاده په پرمختیائي هېوادونو کې جوته ده. د نړیوال تجارت د نظریې اساس په ۱۵ او ۱۸ پیړۍ، یعنې د تجارتي مکتب په وخت کې مطرح شوي دي، او د دې سیاست بنسټ او اساس د صادراتو زیاتوالی او دوارداتو کموالی تشکیلوي.

## اقتصادي وده او سوداګري:

د نړۍ د مختلفو هیوادو په منځ کې سوداګري د تولیدي محصولاتو د کیفیت د ښه کیدو سبب کیږي او د یو هیواد د تولیداتو مازاد نړیوالو بازارونو ته وړاندې او عرضه کیږي. برسیره پردې سوداګري د هیواد د بازارونو دانکشاف سبب ګرځي. او هم د کار ویش او اختصاص ښه کوي او معاصر تخنیک او ټکنالوژي ته په نړیواله سطحه پراختیا ورکوي. نړیواله سوداګري له انحصار څخه مخنیو کوي، او د رقابت او په پای کې د تولیدی کفایت د پیاوړتیا سبب کیږي.

## آزاده سوداګري او د هغې ښیګڼې:

د ډیرو اقتصاد پوهانو په سوداګری د دوهیوادو په منځ کې غالباً د دو کسو په منځ کې سوداګري ده، او د مالونو د تبادلې له نظره د هغه په منځ کې کوم فرق وجود نلري، ولې په نړیواله سوداګرۍ ګمرکي عوارض او محصول اخیستل کیږي، په داسې حال کې چې په داخلي تجارت کې دغسې محصول او عوارض وجود نلري.

## له سیمه ایزو تولیداتو څخه ملاتړ:

د سوداګری او مبادلې د آزادۍ مخالفین معتقد دي، چې د مبادلې آزادی ددې سبب کیږی، چې د نوي صنعتي شوی هیوادونو تولیدات، د پرمخ تللي هیوادونو د تولیداتو سره په رقابت کې تماتیږی، او د هیواد اقتصادي استقلال ته به هم صدمه ورسیږی، او اقتصادي وابستګی به زیاته شي. برسیره پردې آزاد تجارت دیو شمیر مشغولو خلکو به د وزګارتیا سبب شي. ځکه داخلي همجنس، هم رنګه او مشابه شیان (کالي) د خارجي تجارت بازارونو کې داخلیږي، ددې عرضې کار کوونکی به وزګار شي، او په وروستي تحلیل تجارتي موازنه د پرمخ تللی هیوادونو په ګټه تمامیږي.

شپږم څپرکی:

# پیسې، بانک او مالیه

## پیسې (پول)

### په پیسو او یا بې له پیسو تبادله:

کله چې یو شی (یو جنس) د بل شي سره مستقیماً تبادله شي، دغه عمل ته جنسي تبادله وايي، هغه تبادله چې ددو کسو په منځ کې د شیانو په مقابل کې صورت مومي، د هغه د مطلوبیت درجې پورې اړه لري، چې دواړه خواوو ته یې لري، او هر یو د تبادله کوونکی د هغه شي مطلوبیت، چې هغه ته اړتیا لري، ځان سره ټاکي.

جنسي تبادله ځینې مشکلات رامینځ ته کوي:

لومړی: د دو کسو احتیاجات سره یو شان او مشابه نه دي.

دویم: د دو جنسو (شیانو) د تبادلې نسبت مشخص نه دي، او بالاخره د جنسي (جنس په جنس) عمده ستونزې دادي، چې تل نشو کولای، چې د معاملې وړ دوه شیان یا دوه خدمته یو د بل سره منطبق کړو، نظر په همدې مشکل او ستونزې په راکړه او ورکړه کې پیسې (پول) رواج شو.

له پیسو څخه په استفادې سره، راکړه او ورکړه په دو مرحلو کې صورت نیسي:

لومړی: خرڅلاو، دوهم: پیرودل (رانیول)

پیسې په تبادلو کې د رابطې رول لوبوي، او تبادله او راکړه او ورکړه د پیسو سره په چټکۍ او په اسانتیا صورت نیسي.

## د پیسو تعریف:

پیسې په متفاوت او رنګارنګ شکلونو او قسمونو تعریف شوي، او هر عالم نظر په دنده، اشکالو، مشخصاتو او د هغه تاثیراتو او اغیزو سره پیسې تعریف کړي دي.

دیو لرغوني او پخواني تعریف په اساس، پیسې هغه متاع (شی) دی چې، جنسي تبادله له منځه وړي. ځینې وروستي عالمان، پیسې هغه متاع ګڼي چې د هغه لرونکي ته قدرت ورکوي، ترڅو ځان د قرضې څخه په وخت کې خلاصوي، او د خرڅولو او پیرودلو (خرید او فروش) په معاملو کې آزادي ولري. ځینې نور «د پیسو د پیژندنې اسانه لاره» د هغه وظیفو ته متوجه کړي، او د پیسو تعریف یې د هغه وظیفې پورې مربوط کړی دی. هر جنس چې وکولای شي د (تبادلې، د زیرمې، د حسابي واحد ارزښت او د پور د ادا کولو وسیلې) وظیفې سرته ورسوي، پیسې ګڼل کیږي.

ماکس ویبر (Max Weber) پیسې (پول) د یو تبادلوي شی په توګه پیژني او عقیده لري، چې دغه شي په ساتلو کې هم د اقتصادي مختلفو مرکزونو پواسطه د تبادلې د وسیلې په حیث ومنل شي.

البرشت فورست من (Albrisht, Forst, Man) پیسې (پول) یو قانوني طلب ګڼلې دی، او په دې عقیده دی، چې دغه طلب (غوښتنه) تل د فعال کیدو قابلیت لري او د فعال کیدو هدف، د قانوني طلبه څخه پر اجتماعي محصول باندې د کمي او کیفي له نظره څخه عبارت دی، چې د یو تضمین شوي تبادلې د وسیلې په توګه ده. له پورتنیو تعریفونو څخه داسې نتیجه اخیستل کیږي، چې پیسې د هغو وظایفو ته په پاملرنه تعریف شوې ده.

## د پیسو تاریخچه:

دا واضحه ده چې، په تیرو تاریخي وختونو کې، پیسې د نن ورځې په شکل وجود نه درلود، او هم په هغه وخت کې مختلف شیان د پیسو په توګه ګڼل شوي، او

د وخت په تیریدو سره پیسې د هغوی ځای نیولی دی. د راکړې او ورکړې پر مختګ په اثر، د انساني تمدن په لومړیو وختونو کې، د تبادلې وسیلې د پاره ضرورت احساس شو، او د حیواناتو څخه د تبادلې د وسیلې په توګه په راکړه او ورکړه کښې استفاده کیدله. د لومړیو پیړیو په وروستیو کې او د منځنیو پیړیو په لومړیو کې ځینې فلزات (مخصوصاً سره زر او سپین زر) د تبادلې د وسیلې په توګه تراستفادې لاندې واقع شول.

په ځینو ټولنو کې، لکه افریقې او د بحر الکاهل جزیرې، صدف، د مرغی بیٔکی د تبادلې وسیله وه او تر دې وروستیو سلو کالونو د تبادل د وسیلې په توګه ترې استفاده کیدله. مګر انسانان د پوهې او معلوماتو پواسطه وپوهیدل چې ددې مختلفو پیسو له جملې څخه لکه حیوانات، تنباکو، کانې او نور، سره زر او سپین زر د راکړې او ورکړې د پاره د ښه مشخصاتو او معیارونو لرونکي وي، یا په بل عبارت دغه دوه فلزه د پیسو (پول) وظیفې په ښه توګه سرته رسولای شي.

دغه فلزات د خپل کیمیاوي خواصو په اساس چې په طبیعت کې په آزاده توګه وجود لري، او د هغوی د فزیکي خواصو په اساس، لکه ځلیدنې او د ورق کیدو قابلیت او داسې نور د عامو خلکو د خوښې سبب وګرځیدل. پورته ذکر شوې طبیعي ځانګړنې، اغیزمنې اقتصادي نتیجې هم له ځانه پر ځای درلودې او ددې فلزاتو لوړتیا یې نسبت د نورو مالونو او شیانو ته برجسته کړې دي:

په حمل او نقل کې اسانتیا، د سره زر او سپین زر دایمي پاینښت او پاته کیدل، د سره زر او سپین زر مشابهت او همرنګي په ټولو هیوادونو کې، ددې فلزاتو د ویش قابلیت، د نجیبه فلزاتو د پیژندنې وضاحت او نور. ددې فلزاتو ښیګنې او خصوصیتونو د پیسې په توګه قوت وباخښه او د نړۍ د ډیر پخواني هیوادونو سره زر او سپین زر د پیسو په شکل په راکړه او ورکړه کې استعمال کړل او وروسته د سره زر او سپین مسکوکاتو د پیسې په حیث رواج وموند.

وروسته بانکنو ټونه د سره زر او سپین زر پر ځای جریان کې ولوید، او د تعویض قابلیت یې د سره زر په مقابل کې درلود. فلزي او کاغذي پیسې دواړه د مبادلې په جریان کې د استعمال وړ وګرځیدې، پیسې نه یوازې د فلزي او یا په کاغذي شکل وجود لري، بلکې د هغه په څنګ کې لیکلې پیسې (چک، بیه لرونکي اسناد) هم په جریان کې د پیسو په حجم او اندازه ډیر نقش لري.

د پیسی وظیفې:

**الف- د تبادلې وسیله:**

هر شی چې وکولای شي د اجناسو او خدماتو په مقابل کې تادیه او ومنل شي، پیسې بلل کیږي. د هو شي منل او قبلول د تبادلې د وسیلې په حیث دوه عامله لري:

لومړی دا چې پیسې د خلکو په نزد ارزښت لري، او هر څوک غواړي چې هغه د خپلو شیانو (اجناسو) او خدماتو په مقابل کې لاس ته راوړي، دوهم که پیسی ذاتي ارزښت هم ونلري (لکه کاغذی بانکنوټونه) د عام قبولي قابلیت په تبادله کې لري، چې حکومت هغه قانوناً مروج کړی دي، او قانونی پیسې (پول) په توګه پیژندل کیږي، قانوني مروجې پیسې (پول) یا Legal Tender، د خپل د تبادلې قابلیت قدرت د حکومت د توانمندې او اقتدار څخه ترلاسه کوي، او په هر ځای او هر وخت کې دغه کاغذي پیسې، د اجناسو او شیانو او خدماتو د پیرودلو او لاس ته راوړلو له پاره په کار وړای شي، او جنسي مبادلې ته ضرورت نه احساسیږي.

**ب- د ارزښت د ذخیرې وسیله:**

د پیسې د لومړی وظیفی په پام کښې لرلو سره، یعنې د عام قبولي قابلیت څخه د هغه دوهمه وظیفه نشأت کوي. پیسې کولای شي په مختلفو وختونو کې په راکړه او ورکړه کې ورڅخه استفاده وشي. د دې امکان د درک وړ دی، پیسې کولای

شي په وروستي وخت کې د استفادي وړ وګرځي، او په معاملو کې کار ورځنې واخيستل شي، که پیسې د وخت په تيريدو سره خپل د خريد قوه له لاسه ورکړي، د هغه لرونکي کوښښ کوي، تر څو شيان او اجناس د ممکن په صورت ډیر ژر تقاضا وکړي، او يا د جنس په جنس معامله په دې حالت کې د توجه وړ وګرځي. ځنې وخت امکان لري چې د پيسې ذاتي ارزښت د هغه ذاتي ارزښت په نسبت د وخت په تيريدو سره زيات شي. په اوسنيو شرايطو کې پيسې د ارزښت د ذخيرې په توګه، هغه وخت خپله دنده په ښه توګه اجراء کولای شي، چې مقدار يې کنترول شي، او دوهم د هغه په استقرار باندې اعتماد ولري د پيسې استقرار، د موازنې په ايجادولو سره په يو ملي اقتصاد کې د اقتصادي دوران په دننه کې د پيسو د حجم او اندازې ترمنځ ممکنه دی.

**ج- حسابي واحد:**

د پيسې دا وظيفه په دې معنا ده، چې د هغه په اساس د نورو اجناسو ارزښت مقايسه کيږي، يعنې پيسې د نورو شيانو او اجناسو د ارزښت د ټاکلو د وسيلې په حيث عمل کوي، دا يو حقيقيت دی چې د ټولو شيانو او خدماتو بيه په پولي معيار تثبيت کيږي، او د هغې پواسطه سنجش او مقايسه کيږي، د يو حسابي واحد په شتوالي کې د ارزښتونو مقايسه ناممکنه کيږي، او په دې وسيله محاسبه او حسابداري سيستم په ملي اقتصاد کې آسانه کيږي.

**د-د پورونو د اداء کولو وسيله:**

د خلکو او افرادو مالي تعهدات د پيسو پواسطه تاديه او تصفيه کيږي، او ددې وظيفې پواسطه پيسې د پورونو د تاديې يوه وسيله کيدای شي، او هيڅ څوک نشي کولای د پور په ادا کولو کې د هغه د منلو څخه انکار وکړي. مګر دا واضحه ده چې، د پولي تورم په شرايطو کې، پور ورکوونکی (دائن) خساره مند کيږي. د پيسې وظيفه د ارزښت د ذيرمې د وسيلې په عنوان او د هغه په اداء کولو زيانمنه کيږي.

# بانک

انساني تمدن د پخوا زمانو څخه د مالونو او شیانو د تبادلې د نقش او اهمیت، او همدارنګه د پیسو ایجاد او د هغه څخه د راکړه او ورکړې د وسیلې په حیث، د شیانو د ارزښت ساتنې، حسابي واحدونو په درک کولو سره د کریدتي مؤسساتو په منځته راوستلو اقدام وکړ. چې د وخت په تیریدو سره د مالي او پولي ننني مؤسسې اساس او تهداب یې طرح او بنسټ یې کینبودل شو. دغه مؤسسې د خپل تکامل او بشپړتیا په بهیر کې د ډېر ابتدائي او ساده شکل څخه تر اوسني پولي او مالي د څو رابطه ایزه د عملیاتي روابطو په یوه لویه شبکه تغیر شکل وکړ، او دغه تکامل جریان همدارنګه ادامه لري. په اوسنیو شرایطو کې د ټولنې اقتصادي عادي او ورځني فعالیتونه بې له بانکو څخه تصور نشي کیدای.
مالي او کریدتي مؤسسې په اوسني حالت کې د اقتصادي فعالیتو ټولې ساحې احتواء کړې دي، او ددې فعالیتو لمن ورځ په ورځ پراخه کیږي. او ددې مؤسسې د سیاستونو، اقداماتو او تدابیرو ډېر تاثیرات د اقتصادي ژوندانه د فعالیتونو په مجموعه باندې وارديږي.

همدا اوس اوس په ملي او بین المللی مقیاس کې په زیاتو هېوادونو کې مختلف بانکونه د خپل حقوقي شکل او د معاملاتي اهدافو له نظره منځ ته راغلي او هر یو په مختلفو خاصو برخو او څانګو د اقتصادي ژوندانه په ساحه کې فعالیت کوي. په اوسني اقتصاد کې بانکونه اساسي او مهمې دندې په غاړه لري، ورکړې راکړې چارې، کریدتي او مالي عملیات په ملي او نړیواله سطحه سرته رسوي. او زیات تشکیلات او اساسات د مالونو او اجناسو د تبادلې په ساحه کې او په اقتصادي او معاملاتي روابطو بوخت دي.

د بانکي فعالیتونو پراختیا د تجارتي چارو د پراختیا او انکشاف له پاره ډېر امکانات او فرصتونه منځ ته راوړي. او پولي او مالي ډېرې پیچلې او بغرنجې

معاملې په ډیر لږ وخت کې حل و فصل کوي. د امانتونو منل، د حسابونو خلاصول د افتتاح، د کریډتونو ورکول، د معاملې سرته رسول، د اسناد سهم پورې مربوط عملیات، پور او ارزښت لرونکې پانې په داخل او خارج کې د شتمنیو انتقالول اسعاري معاملې، د سره زر معاملې، د ضمانتونو تضمین او صادرول، زراعتي، او تعمیراتي مؤسسو سره کومک، حمل و نقل او مشارکت او په نورو اقتصادي چارو کې معاملې سرته رسول د بانکونو له سترو دندو څخه گڼل کیږي، چې د هغوی د اجرأتو څخه پوهه او معلومات ډیر ضروري او لازمي کار دی.

## د بانکونو د ودې تاریخي بهیر:

د تاریخي اسنادو او شواهدو په اتکا د ۳۲۰۰ - ۳٤۰۰ د میلاد څخه مخکې کالونو کې په بابل کې بانکونو وجود درلود، چې د اوسنی نړۍ د بانکونو سره مشابهت لري، او د هغه مشابه مؤسساتو په لرغوني یونان کې هم وجود درلود، او داسې شواهد هم وجود لري چې د سرو زرو او سپینو زرو څخه د تبادلې د وسیلې په توگه کار اخیستل کیده.

په پخوا زمانو کې هم مروجه بانکي معاملې په یونان کې معمول وې، رومیانو د یوناني تمدن سره په تماس کې له فلزاتو څخه د مسکوکاتو په توگه استفاده کوله، رومي بانکدارانو د یونان مروجه بانکي معاملې وسایلو ته پراختیا ورکړه. په منځینو پیړیو کې سوداگري او د مالونو تبادله ځنډ سره مخامخ شوه، د پورونو تادیه نسبتاً محدوده شوه، او بانکي معموله طریقه هم له فعالیت څخه ولویده.

د سوریې او اسرائیل خلک لومړنی قومونه وو، چې عمدتاً یې پولي معاملې سرته رسولې، او وروسته پولي معاملات د انحصار په توگه د یهودیانو په لاس کې متمرکز شول.

په نهمې او لسمې پیړیو کې یواځې پولي تبادله د یوې حرفې په توگه بلل کیده، چې په اوله کې د زرگرانو له خوا سرته رسیده، هغوی خپل میز Bamea

مارکیټ کې اینبوده ، او پولي راکړې ورکړې یې سرته رسولې ، له همدې امله یې په دولسمه پیړۍ کې د بانکدارنوم ځان ته غوره کړه ، د مسکوکاتو د تبدلۍ څخه د اماناتو معاملې منځ ته راغلې ، په لومړي سرکې په منظمه توګه صورت نیوه ، یعنې امانت اینبودونکي خپل هماغه اصلي سکې ، جنساً لاس ته راوړلې ، ددی منظمو اماناتو څخه وروسته غیر منظم اماناتو وده او انکشاف وکړ ، په دی شکل چې بانکدار مجبور نه و ، چې هماغه سکه بیرته تادیه کړي ، بلکه کولای شو د هغه معادل د هغه لرونکې کسانو ته بیرته ورکړي. په دی وخت کې د حسابدارۍ د سیستم په انکشاف سره د پیسو انتقال د حوالې او برات پواسطه رواج وموند. باید وویل شي چې د بانکي فعالیتونو چټک بدلون سره ، د بانکدارۍ چارې په ایتالیا ، فرانسه او انګلستان کې پراختیا وموندله.

لومړی بانک د وینز په ښار کې په ۱۱۵۷ میلادي کال کې تأسیس شو ، داسمتر دام په (۱۶۰۹) کال کې او دهامبورک بانک په ۱۶۱۹ کال کې تأسیس شو.

نوموړي بانکونو امانت قبلاو او د خلکو د ضرورت وړ حوالې یې سرته رسولې ، په حقیقت کې د سوداګرانو صندوق و . په اوسنۍ زمانه کې اروپایی بانکونه په صنایع ، سوداګرۍ مواصلاتو او پولي راکړه او ورکړه پخې پانګی اچونې کړي دي ، په ایتالیا ، هسپانیا ، آلمان او انګلستان کې اول بانکونه تأسیس شول. ددې بانکونو په څنګ کې ، نور متنوع بانکونه ، لکه: د قرض بانکونه ، د بیړۍ چلولو دا سنادو بانکونه ، د سپما (پس انداز) د بانګې اچونې شرکتونه او داسې نور منځ ته راغلل. له بلې خوانه دولت د بانکي مسألو په هکله خپل مسؤلیت درک کړ ، او د مرزي بانک له طریقه د پیسو خپرولو کنترول ، د قرضې په رهنمايې کې فعاله ونډه واخیستله.

په اوسني وخت کې بانک له با اهمیته اقتصادي پدیدو څخه دی ، د بانکونو

رول او اهمیت په مختلفو هیوادونو کې د هغه د اجتماعي او اقتصادي ودې له نظره متفاوت دی. په صنعتي پرمخ تللو هیوادونو کې بانکونه د هغه هیواد د اقتصاد د رهبري کوونکي عنصر په توګه منځ ته راځي. بانکونه پراخه پانګه اچونې په صنعتي او تجارتی برخو کې کړي دي. او کولای شي د صنعتي درجي وده وټاکي، او پولي سیاستونه تنظیم کړي.

د مخ په ودې هیوادونو په اقتصاد کې د بانک رول د هغوی د اقتصادي ودې د سطحې په تناسب محدودی دی.

## د بانکونو ډولونه:

### الف- مرکزي بانک:

مرکزي بانک، د هیواد په بانکي سیستم کې د خاص موقف لرونکی وی او د پولي سیاست له نظره ټاکلي هدفونه په غاړه لري. مثلاً د پیسو (پول) تدارک د اقتصاد له پاره، د پیسو داخلي او خارجي ارزښت ساتنه، د قرضی ورکول اقتصاد ته د استخدام او اقتصادی ودې د ساتلو په منظور، او بالاخره د تادیاتي انتقالاتو تنظیم له خارج سره او داسې نور.

د مرکزي بانک وظیفې عبارت دي له: د پیسو خپرول، د دولت بانک او د انتقالاتي تادیاتو د تصفیې د مرکز په توګه.

### ب: معاملاتي بانکونه:

معاملاتي بانکونه مختلف ډولونه لري، او د هیوادو د اقتصاد او د هغوی د ضرورتونو په مطابق تأسیسیږي، د پولې پانګې ټولونه، یوې پانګې ته تغییر شکل ورکول، په ملي او بین المللی ساحه کې تادیات سرته رسول، او فردي او ټولنیزو سپماو (پس اندازونو) وظیفی په غاړه لري.

### ج: د پورونو بانک:

د قرضې یا پورونو بانکونه په عمومي توګه، هغه بانکونه دي، چې د

قرضونو او خدماتي معاملی سرته رسوي، مګر د لنډې مودې قرضې ورکوي.
دغه بانکونه معبادی امانتونه لاس ته راوړي، برسېره پردې د ارزښت
لرونکو پاڼو معاملې هم سرته رسوي.

### د- د سپما (پس اندازونو) کسې:

د سپما او پس انداز کسې د افرادو اشخاصو د پس اندازونو په پیاوړی کولو لاس پوری کوي. د پس انداز د موندلو شبکې ته پراختیا ورکوي، د خلکو محدود صنایع ټولوي، او د ټولې شوې مبالغو څخه د اقتصادي فعالیتونو د پراختیا له پاره قرضې ورکوي.

### هـ- د قرضې کوپراتیفونه:

د قرضې کوپراتیفونه دنورو کوپراتیفونو په څیر یو مشخص تعداد ته، د شخصي ګټې د دفاع پر اساس، اداري استقلال او فردي مسؤلیت په اساس قرضې ورکوي. د تجارتي قرضې د کوپراتیفونو وسایل د زراعتي قرضې کوپراتیفونه دي.

### و- اختصاصي بانکونه:

اختصاصي بانکونه یو قسم فعالیت او بانکی عمل سرته رسوي او د فعالیت د ساحې له نظره سره تفکیک کیږي، لکه د بیمې شرکتونه، د عمراني پس انداز وکسې، رهنی بانکونه او سرمایوي شرکتونه.

### ز- انکشافي بانکونه:

دا بانکونه زیاتره سیمه ایز شکل لري، او په ځینو پرمختیایي هیوادونو کې تأسیس شوي دي، د هغوی لومړی هدف، په اقتصادي او اجتماعي پرمختګ کې برخه اخیستل دي. دا قسم بانکونه په انفرادي او دسته جمعي توګه فعالیت کوي او د یوې منطقې د یو هیواد او یا هیوادونو وده او پرمختګ له پاره ټاکلې طرحې او پروګرامونه تر اجراء لاندې نیسي، لکه د آسیایي انکشافي بانک، د افریقا د انکشاف بانک، دلاتینې امریکې انکشافي بانک او داسې نور.

**ح- د امانتونو بانکونه:**

دا بانکونه معمولاً سهامي شرکتونه دي، سپما شوي د نورو مؤسسی په راس او دوران کې سرمايې او شتمني اخلي، او د خپل مقررې په اساس يې په کار اچوي، دغه بانکونه مالي فعاليتونه هم سرته رسوي، مثلاً ارزښت لرونکو پاڼو پيرودل او خرڅولو کار سرته رسوي.

**ط- د کار بانکونه:**

د کار بانکونه هغه مؤسسې دي، چې په صنعتي چاروکې فعالېت کوي، او د هغوی پانګه د هغوی له ذخيرې څخه عبارت دی. برسيره پردې په ځينو مواردو کې د لويې تجارتي اتحاديې پانګې جذبوي او ورباندې کار او فعاليت کوي.

**ی- خارجي مخصوص بانکونه:**

دا بانکونه مالي چارې سرته رسوي او د سرمايې د استفادې او ګټې په خاطر په کار اچوي، او خارجي پانګې را جلبوي، او په خارجي تجارت کې سرمايه ګذاري کوي، او صادرونکي ته قرضي ورکوي.

## عمومي ماليه

د عمومي ماليې د علم تعريف:

د يوې ټولنې د اداری او د چارو د انتظام له پاره د هغو سازمانونوا و مؤسسو موجوديت چې د هغوی مجموعه د هغی ټولنې د حکومت د ستګاه تشکيلوي، لازم او ضروري ده. حکومت يو شمير مسؤلېتونه او وظيفې لري، او همدارنګه له هيواد څخه دفاع او اجتماعي تأمينات په غاړه لري، او مصرفونه هم په غاړه اخلي او متحمل کيږي چې (د عمومي ماليې مخارج) نوميږي.

د عمومي لګښتونو د ورکولو له پاره دولت بايد يو مقدار عوايد د خلکو، مؤسساتو او نورو څخه لاس ته راوړي، چې ددې ضرورتونو له تأمين له پاره دغه

دارائي په مصرف ورسوي. هغه عواید چې دولت یې د خلکو څخه لاس ته راوړي «عمومی عواید» نومیږي، د عمومي مخارجو ټاکل او د هغه مخارجو د تأمینولو طرز او طریقه دعمومي عوایدو په وسیله، د عمومي مالیې د علم موضوع ده. په دې علم کې د دولت دستګا دخل او خرڅ تر څیړنې لاندې نیول کیږي.

د عمومي مالیې عمده(سترې)برخې دا دي:

عمومي عواید، د مالي چارو اداره، د بودجه بندۍ مسایل، د هغو مبالغو څخه ساتنه او حفاظت چې د دولت په اختیار کې دي.

عمومي مالیه پخپله د اقتصاد د علم یوه برخه ده، ځکه چې د انسان د ټاکلې غوښتنې په وړاندې کولو سره تماس لري، او د ټولنې د شخصي افرادو پر تولید او ویش (توزیع) باندې تاثیر لري، او د ټولنې د شتمنۍ پر مصرف باندې هم اغیزمن دی.

## په اقتصاد کې د دولت مداخلې علتونه او عوامل:

د دولت مداخلی یا نه مداخلې په هکله په اقتصاد کې، ځنې منځنی وخت متفاوتې نظر یې وړاندې کیږي. ځینی په اقتصادي چارو کې د دولت د مداخلې مخالف دي، او وائي چې په واقع کې د آزاد بازار مشخصات او عمل د ټولنې اقتصادی ستونزې او مشکلات حلوي، او د اقتصاد د غیر مرکزي شکل پلویان دي، او ځینې نور په اقتصاد کې د دولتونو مداخلې موجودیت لازمي او ضروري ګني. له اقتصادي نظره هم ځینې موارد وجود لري، چې دولت کولای شي تر یو حده پورې په اقتصاد کې مداخله وکړي:

- د اقتصاد انکشاف د برنامه ریزۍ او پالانګذارۍ له پاره او د اقتصادي ودې او پرمختګ ته د رسیدو په خاطر د دولت همکاري او همګامی لازم او ضروري ده.

- د شتمنۍ او د هغه څخه حاصل شوی عاید ویش ښایي د آزاد بازار په

مشخصاتو کې غیر عادلانه صورت ونیسي. دولت کولای شي د هغه د تعدیل او تنظیم په منظور او دې نقیصې له اصلاح له پاره، په عادلانه ویش (توزیع) اقدام وکړي.

- دولت کولای شي چې د استخدام او نفوس په هکله پر ځینو طرحو او نظریو اتکاء ولري، او په دې لاره کې مشخصې پالیسۍ په نظر کې ولري، په داسې حال کې چې په دغسې مواردو کې بازار او خصوصي مؤسسې د لازمې برنامې او نظریې څخه بې برخې دي.

- د نوې محلي صنایع څخه د حمایت په خاطر په خارجي مشابه شیانو د تعرفې او محصول وضع کول لازم او ضروري دي، او دا کار د دولتونو په صلاحیت کې دی، ترڅو په دغه اقداماتو لاس پورې کړي. خصوصي تشبث د دغسې چارو په سرته رسولو نه قادر دي او نه علاقه لري.

## عمومي لګښتونه:

د دولتونو مهمه وظیفه د پخوا څخه د پردې د تجاوز په مقابل کې د هیواد ساتنه ده، نو ځکه، د هیواد د دفاع مخارج، د عمومي لګښتونو ډیر ستر شمیر تشکیلوی. د دولت بله وظیفه د نظم او داخلي امنیت، او د عدالت تأمین د افرادو تر منځ د اختلافونو د رفع کولو په خاطر دي.

د دولت بله وظیفه د حکومت د دستګاه لګښتونه تأمینول دي، له پورتنیو مصارفو برسیره، دولتونه او حکومتونه له پخوا څخه یوه بله مهمه وظیفه هم په غاړه لري، چې په تدریج سره یې د اقتصادي مؤسسو په پراختیا سره ډېر اهمیت پیدا کړی، دغه وظیفې دادي:

عمراني او ساختماني طرحې، د لارې، کانالونو، هوائي میدانونو، د برېښنا او مخابراتو شبکې ایجادول او داسې نور.

## د مالیې ډولونه:

### الف- مستقیمې مالیې:

مستقیمې مالیې په دوو ډولو ویشل کیږي: پر شتمنۍ مالیې او پر عوایدو مالیې. په اوسني وخت کې تقریباً په ټولو هیوادونو کې مستقیم مالیات اساساً پر عوایدو باندې دي، او مالیې پر شتمنۍ (دارائی گانو) تقریباً محدودې دي.

### ب- پر ځمکو باندې مالیې:

له پخوا زمانو څخه مالیې له مختلفو شتمنیو څخه اخیستل کیده. یوه له پخوانۍ او معمولو مالیو څخه، پر ځمکې باندې مالیې دي، پر ځمکې باندې مالیې د تاریخ په اوږدو کې له زیاتو تغیراتو او بدلونونو سره مخامخ شوي دي.

پر ځمکې باندې مالیې، یا د ځمکې له عایده څخه اخیستل کیږي، یا د ځمکې له قیمته څخه اخیستل کیږي.

د ځمکې پر عایداتو باندې مالیې، هماغه د مزروعي املاکو پر عاید باندې مالیې دي. د ځمکې پر قیمت باندې مالیې هم دو شکله لري: یا پر ټول قیمت، یا پر اضافه قیمت. مالیې پر اضافه قیمت هماغه د مالیې وصول، له ناکسب شوي عایده څخه ده. د ځمکې له اضافه قیمت څخه مالیه هم کولای شي، په دوو طریقو واخیستل شي: یو د ځمکې د انتقال په وخت کې د یو مالک څخه بل مالک ته، یعنې د ځمکې د خرڅلاو په وخت کې په دې ترتیب چې: خرڅونکی مکلف کیږي چې د خپلې د ځمکې د خرید او فروش له تفاوت څخه یوه برخه د مالیې په شکل دولت ته ورکړي، بله طریقه په هغه موقع کې ده چې مالیه د ځمکې د انتقال په صورت کې د یو خاوند (مالک) څخه بل خاوند ته نه منتظر کیږي، بلکه خاوند مکلف دی چې یوه برخه د ځمکې د ارزښت تفاوت، چې ده پورې مربوطې دي په کلونو یا کال کې چې اساس نیول شوی دی، د مالیې په توگه تادیه کړي.

**ج- ماليې پر ارث او بلاعوض انتقالات:**

يو د مهمو او معمولو ماليو پر شتمنيو، ماليې پر ميراث دي، او هغه داسې ماليې دي، چې د مالونو او شتمنيو، چې له يو شخص څخه د فوت نه وروسته پاتـه شوي دي.

**د- پر عايد باندې ماليې:**

د ډېرو اساسي او مهمو مستقيمو ماليـاتو څخه په ننني هيوادونو کې پر عايداتو باندې ماليې دي. دغه ماليې د اشخاصو د خالص عايد څخه لاس ته راځي.

**هـ- سرانه ماليې:**

سرانه ماليه د مستقيمو مالياتو څخه يو ډول ماليه ده، چې په پخوا زمانو کې معمول او اوس متروک شوې دې، يعنې له هر فرد څخه به ماليه اخيستل کيده.

**و- حقوق او گمرکي عوارض:**

حقوقو او گمرکي عوارض له پخوا څخه تر اوسه د دولتونو د عايد له مهمو منابعو څخه دي. د هر هيواد حقوق او گمرکي عوارض د هر مختلف شي (جنس) په نسبت په سند کې درج شوي دي، چې د هغه هيواد د «گمرکي تعرفې» په نوم ياديږي.

د گمرکي تعرفې په تنظيم کې بايد لاندې ټکي په پام کې ونيول شي:

- د اجناسو طبقه بندي
- نرخ بندي.
- د اجتماعي، اقتصادي او سياسي اهدافو تأمينول.

**ز- پر معاملاتو باندې ماليې:**

پر معاملاتو باندې ماليې، هغه ماليې دي چې د پيرودلو او خرڅولو په وخت کې د معاملې د قيمت په تناسب له خرڅوونکي څخه اخيستل کيږي. خرڅوونکي

هم دغه مالیې د خرڅلاو په وخت کې د شي (جنس) پر قیمت باندې زیاتوي، پیرودونکی (خریدار) ته یې انتقالوي. پر معاملاتو باندې مالیې د هغه د پراختیا او عمومیت له مخې په لاندې توګه دي:

- د پرچون فروشۍ پر معاملاتو باندې عمومي مالیې.
- د توزیع کوونکو څخه پر معاملاتو مالیې.
- پر معاملو باندې عمومي مالیی.
- د لاس ته راوړل شویو د مجموعې څخه مالیې.
- له خالص عاید څخه مالیې.

**ح- پر لګښت باندې مالیې:**

پر مصرف باندې مالیې، هغه مالیې ته ویل کیږي چې، د یو جنس د قیمت یو جزء دی او د جنس پیرودونکی (خریدار) د پیرودو په وخت کې هغه تادیه کوي.

هغه مبلغ چې هر شخص د دې ډول مالیې له پاره ورکوي، د هغه لګښت په اندازې پورې تړلې دي.

پر لګښت باندې د غیر مستقیمو مالیو ستر ډولونه:

- پر نفتو باندې مالیې.
- پر دخانیاتو باندې مالیې.
- پر تجملي او غیر ضروري شیانو باندې مالیې.

د حق ثبت مالیات.

غیر مستقیمې مالیې چې په اکثرو هیوادونو کې معمول دي، هغه مالیې دي چې، د حق ثبت په عنوان ورکول کیږي، یعنې هغه مالیې دي چې د اسنادو او املاکو او د معاملو د ثبت له بابته په رسمي دفترونو او یا نورو ادارو کې لاس ته راځي.

# مآخذونه او منابع


۱ - آصفی، محمد مهدی، گردش ثروت در سیستم اقتصاد اسلام، د محمد علی مقدس، ژباړه تهران

۲ - اشرفی، محمد نعیم، حقوق تجارت، د اقتصاد پوهنځي لکچر نوټ (ناچاپ).

۳ - الزام، ذبیح الله- محتوی و مفهوم علم اقتصاد، د اجتماعي علومو مجله کابل پوهنتون، کابل، ۱۳۵۸ کال.

٤ - بورروین، اقتصاد نوین، ترجمه احمد نامدار، انتشارات اقبال ایران، ۱۳٤۷ کال.

٥ - پورمقیم. سید جواد - اقتصاد بخش عمومي نشرني، ۱۳۷۳ کال، تهران.

٦ - پیرنیا، دکتور حسین، مالیه عمومی مالیاتها و بودجه ایران چاپ.

۷ - تفضلی، فریدون - تاریخ عقاید اقتصادی، آرمان چاپ تهران، ۱۳۷۲ کال.

۸ - جیروند، عبدالله، برداشتی از مالیهء عمومی، تهران ۱۳٦۸ کال.

۹ - دوست، محمد انور، لکچرنوټ پول و کریدت (ناچاپ)

۱۰ - دولتشاهی، طهماسب محتشم، مبانی علم اقتصاد ۱۳۷۰ کال، تهران.

۱۱ - دنیز فلوزا، اقتصاد معاصر و اعمال اقتصادی، د منوچهر فرهنگ ژباړه نشر سروش، تهران ۱۳۷۰ کال.

۱۲ - سرابی عبدالواحد، تاریخ نظریات اقتصادی، کابل پوهنتون، ۱۳۵۸ کال.

۱۳ - شبان محمد انور، تئوریها، عوامل و سیاست های انکشاف، ۱۳۷۵ کال، پیښور.

۱٤ - شبان، محمد انور اسد، محمد نعیم، امکانات استفاده از نظریات و سیاست پولی و بانکداری در افغانستان، ۱۳۷۵ کال پیښور.

۱۵ - غوثی، محمد عارف، قاموس اقتصاد، ۱۳۵۳ کال کابل.

۱٦ - فرهنگ، منوچهر فرهنگ، بزرگ علوم اقتصادی، دویم ټوک، ایران، ۱۳۷۰ کال.

۱۷ - قره باغیان، مرتضی فرهنگ اقتصاد و بازرگانی ۱۳۷۲ کال، تهران.

۱۸ مزارعی، عدنان، اصول علم اقتصاد، ۱۳۵۲ کال، ایران.

۱۹ - منتظر ظهور، محمود اقتصاد خرد - کلان، ایران.

۲۰ - د مارکتینګ مضمون لکچرنوټ اقتصاد پوهنځی ناچاپ.

۲۱ - نیاز، غلام محمد نیاز، تصدی بانکی د اقتصاد پوهنځی لکچرنوټ.



## د اریک د گرځنده کتابتونونو د اداری خپاره شوی کتابونه

١ - د افغانستان عمومی جغرافیه
٢ - جغرافیای عمومی افغانستان
٣ - د افغانستان تاریخی ودانی
٤ - بناهای تاریخی افغانستان
٥ - د افغانستان محلی خواړه
٦ - ورزشهای محلی افغانستان
٧ - سپینه کوتره
٨ - کسان طلایی
٩ - زده کړو چی ورزده کړو!
١٠ - بیا موزیم تا بیاموزانیم!
١١ - په افغانستان کی د
چاپیریال ساتنه
١٢ - حفاظت محیط زیست در افغانستان
١٣ - په افغانستان کې د بوزغلیو او
باغونو جوړونه او روزنه
١٤ - تربیه و تهیه ء بزرق و
باغها در افغانستان
١٥ - د تمدن سوغات
١٦ - ارمغان تمدن
١٧ - زلزله در افغانستان
١٨ - په افغانستان کې زلزلې
١٩ - معیوبین و جامعه
٢٠ - معیوبین او ټولنه
٢١ - د افغانستان لنډکی تاریخ
٢٢ - تاریخ فشرده ء افغانستان
٢٣ - د چرگانو ساتنه او پالنه
٢٤ - مرغداری
٢٥ - دنیای کودک
٢٦ - د ماشوم نړی
٢٧ - نگاهی بر اوضاع اقتصادی افغانستان
٢٨ - د افغانستان اقتصادی حالت ته یو د کتنه
٢٩ - د شاتو مچیو روزنه
٣٠ - زنبور داری
٣١ - د افغانستان مشاهیر
٣٢ - مشاهیر افغانستان
٣٣ - د افغانستان کلک پوستي میوي
٣٤ - میوه های سخت پوست افغانستان
٣٥ - جغرافیاي ولایات افغانستان
٣٦ - د افغانستان د ولایتونو جغرافیه
٣٧ - تکنالوژی بایوگاز
٣٨ - د بایوگاز تکنالوژي
٣٩ - پرخوری یا خود خوري
٤٠ - ډیر خوراکی
٤١ - بازی های عامیانه اطفال
٤٢ - د ماشومانو ولسي لوبي
٤٣ - ٤٤ - لنډي ها
٤٥ - رهنمای تشخیص و تداوی امراض
چشم، گوش، گلو و بینی
٤٦ - د سترگو، غوږ، ستوني او پزې
ناروغیو د تشخیص او درملنې
لارښود.
٤٧ - سرگرمی با تجربه های علمی
٤٨ - په عملي تجربو سره وخت تیرول
٤٩ - په افغانستان کې کانی زیرمی
٥٠ - ذخایر معدنی افغانستان
٥١ - اساسات ماهی پروری
٥٢ - د کبانو د روزلو لارښونې
٥٣ - اوبه د ژوند سرچینه
٥٤ - آب سرچشمه ء حیات
٥٥ - تدبیر منزل
٥٦ - د کور سمبالښت
٥٧ - سبزی ها
٥٨ - سابه
٥٩ - د افغانستان مشاهیر (دویم ټوک)
٦٠ - مشاهیر افغانستان (جلد دوم)
٦١ - توصیه های مفید برای انکشاف باغداری
در افغانستان
٦٢ - په افغانستان کې د باغونو د پرمختگ په
هکله گټوري لارښوني
٦٣ - شاهراه های افغانستان
٦٤ - د افغانستان لوی لارې
٦٥ - ورزش
٦٦ - ورزشی
٦٧ - تاریخ مختصر وسایل اطلاعات جمعی در افغانستان
٦٨ - په افغانستان کې د ډله ایزو اړیکو وسایلو لنډ تاریخ
٦٩ - سیمای محیط زیست افغانستان
٧٠ - د افغانستان د چاپیریال بڼه



سیف الدین سیحون د زین الدین زوی

په ۱۳۳٤هـ ش کال د بدخشان ولایت په

درواز ولسوالۍ کې زېږېدلی.

**زده کړې:**

د بدخشان پامیر لیسه، پروان

دارالمعلمین، کابل پوهنتون د اقتصاد پوهنځي ماستر (۱۳۷۱هـ ش).

**دندې:**

د بدخشان ولایت په ښوونځیو کې ښوونکی، د بلخ او کابل د

پوهنتونونو د اقتصاد په پوهنځیو کې استاد.

**آثار:**

تحلیلي از امکانات سرمایه گذاری خارجی و اقتصاد افغانستان،

دورنمای انکشاف صنعت در پلان انکشافی، یو شمیر مقالې او همدا

اثر (اقتصاد).

په بېلا بېلو سیمینارونو او ورکشاپونو کې یې ګډون کړی، او علمي

رتبه یې پوهنیار ده.





د اریک د ګرځنده کتابتونونو د خپرونو لړۍ

پرله پسې نومره ۷۲